# خیالونه او فکرونه

ستا د غمه ډک زړګي، خیالي دنیا مې خوښه ده
ورکه مې دنیا شي، زه به سر و سامان څه کړمه

ته چې پکښې نه ئې زه به ښکلي جهان څه کړمه
اے زما جانانه! زه به بل یو جانان څه کړمه

غواړم چې مې زړه کښې هر زمان وې ته
ته چه خوا کښې نه ئې زه به داسې زمان څه کړمه

ځکه شعر وائم مې یو نُور د یار په زړه کښې دے
بیان چې د یار نه وی سحر هسې بیان څه کړمه

ایم۔ طارق سحر

## ﴿ ټول حقونه د مصنف دی ﴾

مصنف: ایم۔طارق سَحر
دکتاب نوم: خیالونه او فکرونه
شمیر: ۵۰۰
بیعه: ۱۲۰ روپئی
کمپوزنګ: امیج میکر ګرافکس
د چاپ ځائ: دی سن پرنټرز مردان
کال: مئی ۔ ۲۰۱۰ء

خورونکی: (۱) پښتو ځانګه پیښور یونیورسټی
(۲) ګورنمنټ سیکنډری سکول لوندخوړ(مردان)
(۳) توحید وسنت بک سنټرلوندخوړ بازار،ضلع مردان



## (تــړون)

د محـمــد شـفیـق، خلیق احمـد او حفصـه طـارق
پـه نـوم چې د مـرګ نـه پـس بـه ماته دعاګاني کوي۔
او پــه دنیــا بــه ځــمــا نـخښـي پـاتـي وی۔

ایم۔طارق سَحر

## اے خلقـــو!!

زړۀ ورتـــه صــفـــا کـــه، د صــفـــا زړګـــی خبـــرې دی
ګـــوره بیـــا ئـــي ګـــوره د رســـا زړګـــي خبـــرې دی
مـــا پـــه ډیـــر احســـاس او پـــه ډیـــر ســـو چ ســره لیـکـلـی دی
ســـتـــرګـــي دې رنـــړا کـــه، د رنـــړا زړګـــي خبـــرې دی

ایم۔طارق سحؔر



## "خیـالـونـه او فـکـرونـه"

ایم۔طارق سحؔر صیب د پښتو ادب یو ښه شاعر دے۔ **"خیـالـونـه او فکرونـه"** د سحؔـر صیب پنځمـه مـجـمـوعـه ده۔ د دې نه مخکښې د دشت لاروې، ژوند یو سراب، یادونه او دردونه او خالی لاسونه د پښتو شعر ادب ښکلا او سرمایه ده۔

خوشحال بابا وائي:

دخـــوشـــحـــال خټک لـــه عشـق ګـفتـګـوی شـــی
چـي پــه لـوښـی کـښـي څــه وی هغـه ترې توئ شـی

شـعـروادب د شـاعـر د زړۀ آوازوی، د شـاعـر د شخصیـت او د مـاحـول هیـنـداره وی، شـاعـری د خپل چارپیـرچـل عـکـاسی او آپ بیتی وی شعروئیل ګران وی څوک یوه ښه خبره هم نشی کولې زړۀ چې څنګه وی هغه رنګ خبرې کوی۔

طارق سحؔر صیب نوې نه بلکه یو زوړ او تجربه کار

شاعر دے۔ سّحر صیب کښې د فطرت نه مجازي مینه زیاته ده انسان دوست انسان دے۔ مینه او درد ئې له ازله مونډلی دی، دسّحر د زړۀ لوښې کښې پاکه مینه او اخلاص دے خو دا هم یوه قاعده ده چې المجاز قنطره الحقیقت، مجاز د حقیقت پُل دے۔ سحر صیب دمجاز په پوړې حقیقت طرف ته تلے دے، سحر صیب د مجازی مینی نه پس دنیا او دا هر څه هیڅ ګڼړی۔داسی ښکاری چې د طارق صیب د زړۀ لوښې کښې د میني، تصوف یو درد دے او هغه د شاعری په ژبه راتوئیږی۔

"**خیالونه او فکرونه**" که ولوستې شی نو وګورئ چې د فنا یو درد پکښې ډیر زیات دے۔که مونږ وو ایو چې سحر صیب یو بزرګ او صوفی شاعر دے نو ډیره به ټیک وی ځکه چې "خیالونه اور فکرونه" د میني، درد، تصوف او فنا یو تفصیل دے

اے بادشاه د کل جهان، اے الله، ژوند، حُسن، مور، اے مالکه د جهان، اے وخته، ګناهونه، دکوڅو خلق څه



شو، کوچ کړه ئې دتصوف نه ډک نظمونه دی۔

سّحر صیب نظم، آزاد نظم اور غزل په یو ښکلي تسلسل لیکی، الفاظ ساده، مضمون معنی داراود درد نه ډکه ښکلې د ارمان شاعری کوی۔

زما ارمان درسره یوسه چې ځې
ښکلي جهان درسره یوسه چې ځې
پریږده چې ګرځم لیوني لیوني
ځما درمان درسره یوسه چې ځې

د هسې رسمی عبارتونو حاجت نشته لنډه د چې که څوک ښه وائی که بد خو سّحر صیب د پښتو ادب یوه درنه سرمایه ده۔

ډاکټر پرویز مهجّور
انسټیټیوټ آف پشتو لینګویج
اینډ لیټریچر پشاور یونیورسټی،
پشاور پاکستان۔ (۴ اپریل ۲۰۱۰)

## ﴿ یو څو خپلي خبري ﴾

هسي لافي ویشتل څه معنی نه لری۔دا کتاب خیالونه او فکرونه ستاسو وړاندے دے۔ د دې نه مخکښي (۱) د دشت لاروې (۲) ژوند یو سراب (۳) یادونه او دردونه (۴) خالی لاسونه۔ ما دَ پښتو ادب په شاعری کښي ورګډې کړی دی۔ " خیالونه او فکرونه" ځما نوی خیالونو او فکرونو یو تصویر دے۔ دا ګز او دا میدان، دا کتاب دے ولولئی چې څه مې محسوس کړی او په څه مې زړۀ درد کوی هغه ما لیکلی دی۔

د ادب او شاعری هم دغه موضوعات وی، ادب او شاعرئ کښي د پیسو او روپو خبرې نه وی دشاعری موضوعات هم دغه عشق، محبت، حقیقی وی که مجازی، دعرش وفرش تحیلات وی خو هر شاعر په خپل خپل انداز کښي وئیل کوی۔

یو ځل بیا وایم چې نه انعام غواړم، نه نوم شهرت



غواړم، خوبس د شعر په ژبه مې دغه لیک کړې دے کښ ښۀ وی نوهم زما اوکه بد وی نو هم زما۔ د ادب ټیکدار نه یم، ځني خلق ځان مني، بل نه مني۔او دا څه قران هم نه دے خامخا به غلطی لری،بس دومره وایم چې څه مې وئیلی او لیکلی دی لږ په غورئې وګورئ چې څنګه دی۔

د ډاکټر پرویز مهجور صیب او ډاکټر راج شاه خټک صیب ډیره ډیره مننه کوم چې زما د پښتو په لیک وخت په وخت خپل تاثرات لیکی۔ ځکه چې دا یو طرف ته د پښتو ادب ښه پوهان دی او د ډیرو مودونه ځما سره ئې سترګی اشنا دی۔ د مهجور صیب او راج ولی شاه خټک صیب د زړه د تل نه مننه کوم۔ ورسره د خپل ورارۀ محمد اعظم خټک چې خپل تاثرات ئې ځما په شاعری لیک کړۀ۔

ایم۔طارق سؔحر

شاه ډهنډ، لوند خوړ، مردان

خیبرپښتونخواه،پاکستان۔ ( ۲۰۔۰۴۔۲۰۱۰ء)

## "ځماد ترۀ يو څوخبرې"

زه د خپل خوږترۀ په غيږه کښې لوئې شوی يم۔ ماته د خپل ترۀ احساسونه د نزدې نه ښکاره ښکاري، ځما تره يو غلي خو پوهه انسان دے مينه او درد ئې مينه او درد ئې ازله راوړی دی دنيا هيڅ ګڼری دا هر څه ورته فانی ښکاری د فنا ډيرې خبرې کوی يو ډوب احساس لری۔ په دنيا او زمانه ئې ژور نظر دے ځکه خو شاعر دے۔ يو رسمي انسان او شاعر نه دے بلکه يو ريښتوني انسان او شاعر دے۔ د کائناتو د هر څيز نه ډير زر اثر اخلی، د معمولي څيز تل ته کوزيږی۔ طارق سَحر صيب يو پاک، پوهه، صوفي او رمينه ناک انسان دے او شاعری ئې د دې خبرونه عبارت دے۔

په مينه

محمد اعظم خټک

د زرعی علومو طالب علم هزاره یونیورسټی

خیبرپښتونخواه، (27-03-2010)



## ﴿ اے بادشاه د کُل جهان ﴾

اے بادشاه د لا مکان، اے بادشاه د کل جهان
چاته ورکړې بادشاهی، څوک د لارې فقيران

څوک اعلیٰ دِ کړۀ خالقه! څوک ادنیٰ دِ کړۀ مالکه!
دبدبه دچاته وکړه، څوک خزلې د ډهيران

څوک بدرنګه دے پيدا کړۀ، خواران هسې دِ رسوا کړۀ
څوک سپوږمئی د خوارلسمې، څوک شو ستوری د آسمان

څوک له ډيرې بدې ورځې، نه په لاره تللي نشي
څوک دِ مست هسې پيدا کړۀ په هوا کښې وی روان

څوک دِ دومره ډير ماړه کړۀ چې دعوه د خدائی کړی
څوک دې درپه درسوالګری، د ټکرې پسې حيران

څوک له ډيرې دانائی دې ارسطو او افلاطون کړه
څوک په هيڅ دِ پوهه نه کړه ليونی څيرې ګريوان

خوشحالي دِ چاته ورکړه مستانه په جهان ګرځي
څوک ژړېږي همه عمر په خپل ځان پسې پرېشان

چاته ورکړي عزتونه، عجيبه غونډي ئې شان
څوک ذليله بے نوا کړي په ژوندون باندي ستومان

څوک آزاد وي بې مهاره، نه په پوزه ئې پېزوان
څوک دِ بند په بند بندي کړي هميشه وي غلامان

زۀ سحر چې دي ، کتاب د جهان لولم
نو زړګي دردونه کاندي، بيا خپل شعر کړم بيان



## اے اللہ !!

تۀ له زمکي نه خواږه پيدا کوي
تۀ له زمکي نه تراخۀ پيدا کوي

تۀ ميزبان د مخلوقاتو---
دوی له پاره تۀ هر څۀ پيدا کوي

اے خالقه! تا اوبونه ژوندون جوړ کړو
تۀ له زمکي نه اوبۀ پيدا کوي

ستا آسمان کښي ډيوه بله---
بيا په شپه کښي تۀ تيارۀ پيدا کوي

يو سُور اور دے پکښي کيښودو پخپله
تۀ له زمکي نه سارۀ پيدا کوي

هيڅ طاقت په چا کښي نشته چي پيدا کا
هر څۀ زمکي نه هم ته پيدا کوي

عجیبه د تا خلقت دے ورته ګورم
څه خولوې او څه واړۀ پیدا کوې

نیغ خو نیغ دی تا پیدا کړۀ
له دې زمکې نه کاږه پیدا کوې

سحؔر نشی ستا ثنا بیانولے
له بدرنګو نه تۀ ښۀ پیدا کوې



## ماکښې مهمان رسولﷺ!

قافلې ځي او راځي، یو پکښې زۀ نۀ یمه
ماکه جانان رسولۀ، ماکه مهمان رسولۀ

دا مې په زړۀ دے ارمان چې ستا کوڅې ووینم
اے مهربان رسولۀ، ماکه جانان رسولۀ

په تصور کښې چې ئې، د زړګی سر کښې چې ئې
د مدینې کوڅو کښې، ماکه میزبان رسولۀ

چې صرف یو وارې، زۀ ستا دیدار وکړمه
د نبویؐ په صحن، یو ځل دربان رسولۀ

چې زړۀ قرار ومومي، چې زړۀ بهار ومومی
ماخپل دیدار له بوځه، عظیم الشان رسولۀ

ما خپل دیار ته بوځه، ما خپل مکان ته بوځه
له تانه لرې لرې، یم پریشان رسولۀ

دا مې په زړۀ ارمان دے چې ستا کوڅو له درشم
واوره کلام د سحؔر، د زړۀ بیان رسولۀ

## غزل

ستړې مې زړګي کړو ستا پُوښتنو ستا غوښتنو
سترګې مې ړندې شوې، ستا د لارې په کتنو

هیڅ به پکښې نه وو، پکښې ته به او سیدلې
اوس زخمې زخمې دے د فراق په سرو داغونو

ستا موندل زما ارمان وو ستا وصال زما ارمان وو
سوې سوې غوندې ښکارې یاره ستا په ارمانونو

ډیر ظلمونه کړے اے یاره ستا فراق زۀ لیونې کړم
زړۀ مې ستړې شو دلبره! ستا په ډیر انتظارونو

نه پوهیږم، نه پوهیږم ښۀ او بد نه نا خبره
د خپل حال نه نا خبره، په دلو دلو ظلمونو



تا هر ځاے کښې لټومه، تا هر وخت زۀ یادومه
مې پیدا په زړۀ کښې درد کړو ستا غمونو ستا یادونو

څه خواهش او څه ارمان شوے څه ځان او څه جانان شوے
زندګې دِ تپوله ځار کړه د خپل یار په حسرتونو

د سحر د زړګي مینه، د سحر د زړګي اُور دے
اوښکې ځي زما د سترګو مې له مینې د دردونو

## کوچ کړه!

دا دنیا د اوسیدو نه ده اوس کوچ کړه
هر طرف ته شرمخان، او بلاګان دي

ته به وائې چې انسان دے ته به وائې مسلمان دے
په ظاهر کښې وي انسان، دننه ګران دي

ماتوي دې که ته ورغلې په مخه
په ځنګل کښې ته به وائې چې پړانګان دي

دا انسان د څه انسان؟ ډېره ډېره که له ده نه
خپل مطلبه، بے خلوصه، خود غرضان دي

لاړ شه، لاړ شه په خپل لوري، خپل منزل ته
د دې پاتې دنیا ګئ دا پتنګان دي

اژدها غوندې چیچل که، لکه سپي غوندې داړل که
څه سګان دلته او سیړی دلته تورتور ښاماران دي

دا دنیا دوسیدو نه ده سحر
څه ورځه ته تري سفر که، فرعونان دي



## غزل

شعر نه دي، ما فکرونه راټول کړي
ده یو څړیکه دزړګي مې، ما دردونه راټول کړي

مې جانان کوي ظلمونه، نه کړي میني سره مینه
هسې حال وئیلې نه شم، مې خیالونه راټول کړي

هسې نه دي دا مې دي د زړۀ خبرې
څه مې آه ۔۔۔ څۀ فریادونه راټول کړي

خلق نه کوي بل چاته، د زړګي پټې خبرې
زۀ ئې وائمه هر چاته، ما رازونه راټول کړي

د سحر د زړۀ خبرې د سحر د خیال خبرې
څه خوږې دي ما خواږه خواږه سوچونه راټول کړي

## فقیران

واوره ملنګانو نه، واوره فقیرانو نه
څنګ کره غریبانو نه، څنګ کره درویشانو نه

دا ولي الله وی، دا خو اهل الله
مئین په دوی الله وی جدا له ګدایانو نه

نزدې ډیر دالله وی دا حبیب الله وی
خپل زړګی ته کوره، بیا واوره غریبانو نه

آزار که شو آزار به شي خوشحال ساته اے یاره دا
مه چیړه دا مه چیړه، واوره ملنګانو نه

سپک نظر پرې مه کوه، کم نظر پرې مه کوه
عام نه دی خوا ص دی، دا د رب دوستانو نه

سحَر هم ډیر حقیر دے سحَر هم یو فقیر دے
لرې امیرانو نه، دے د فقیرانو نه



## غزل

تیر وختونه لړ رایاد که، دلربا زما د زړهٔ وے
لکه ګل غوندې ښائسته وے څومره ښکلي څومره ښهٔ وے

څومره ښکلي ښکلي ته وے، څومره ښکلي ښکلي زهٔ ووم
ټوله مینه مینه زهٔ ووم، ټول اوبه اوبه به تهٔ وے

زما زړهٔ کښي اوسیدې به، مي په خیال کښي اوسیدې به
مي د زړهٔ دننه ته وے، مي بهر به تهٔ په خله وے

زما زړهٔ به بي قراره، مي به زړهٔ وو بي مجاله
سترګو ستا پسي ژړل به، مي په خوا کښي چي به نهٔ وے

زړهٔ مي غواړی دلربا تا، زړهٔ مي غواړی تیر وختونه
چي په خوا کښي مي هم ته وے او وختونه ټول زاړهٔ وے

فاصلي وختونو راوړے، ته جدا شولي له مانه
تیر وختونه را په زړهٔ که، چي به ته وے او به زهٔ وے

نیمه لاره کښې دې پرېښوم، سمه لار رانه خطا شوه
وخته بیا په بېرته راشه، ښکلی ښائسته وې

ټوله شپه به ما سره وو، ستا فکرونه
زۀ به ویښ وومه ستا یاد کښې، ته اوده وې

تېر وختونه راپه یاد کړه د سحرّ د زړۀ د پاره
ولې لرې شوې لمانه، چې به زړۀ کښې ما سره وې



## ﴿ غزل ﴾

تار په تار به دې اعضاء شي، ذرې ذرې به شي
هر پیوند به دې جدا شي، ذرې ذرې به شي

هغه ځای کښې به بندې شي نه به لار لري نه ور
وجود به دې بې ساه شي، ذرې ذرې به شي

ګیا به ترې زرغون شي، دا ستا ښکلی وجود نه
چینجې به پرې لګیا شي، ذرې ذرې به شي

عمرونه به تېرېږي، تورو خاورو کښې به پروت ئې
ژوندون به په صحرا شي، ذرې ذرې به شي

دا هر څۀ خوب و خیال دی، هوا غوندې تېرېږي
ژوندون به دې هوا شي، ذرې ذرې به شي

ته وائې دا زما دي، دا ستا نه دي اے یاره!
هر څیز به د بل چا شي، ذرې ذرې به شي

سحرّ! بیا به پروت ئې، په یو خوشې بیابان کښې
جدا به له دنیا شي، ذرې ذرې به شي

## بیا به وی یاری چرته!

بیا دا ورځي شپي چرته، بیا دا زندګی چرته
بیا ښکلي لمحي چرته، بیا به دا ځوانی چرته

یو واري راغلي یو، بیا زندګی نشته دے
بیا به د چرچي چرته، بیا به وی وختی چرته

سپک هیچا ته مه ګوره خو ده فانی دنیا
بیا به څوک مومی چرته، بیا به جانانی چرته

ماسره یاری وکړه، نن د یارۍ ورځي دی
بیا به دلبری چرته، بیا به وی یاری چرته

پورته خپلي سترګي کړه، نن د ځوانئی ورځي دی
بیا به وی ځوانی چرته، بیا به بندګی چرته

بیا که ډیر ډیر وژاړې، زمکه آسمان وکوږې
نه به ارمانی چرته، یم به زندانی چرته



بیا به تله راتله نه وی، بیا به زه او ته نه یو
بیا به زندګي چرته، بیا دا هیستی چرته

ورک به شو فنا به شو، د یادو دلربا به شو
بیا به خوشحالی چرته، بیا به دا مستی چرته

بیا افسوس افسوس به شي، بیا ارمان ارمان به شي
بیا به خوشحالی چرته، بیا دا سپرلی چرته

مینه مینه مینه شه، حسن حسن حسن شه
بیا به رنګینی چرته، بیا به دا خوبی چرته

وایه ئې په شعر کښې نن د ځواني ورځي دی
بیا به وی سحر چرته، بیا به شاعری چرته

## اے جانانه!

دا ستا عجیبه مینه، ما جدا ساتي له ځانه
جدا چي زۀ له تا یم، زۀ به مړ شم له ژړا نه

زما دلبر با ته ئي !اے زما محبوبا ته ئي
راجخت مي کړه خپل ځان ته، اے زما ښکلي جانانه

فراق کښي عمر تیر شو، زۀ جدا یمه له تا نه
نزدې مي که خپل ځان ته، جدائی ده ډیره ګرانه

ته هسئي په خله وائي، مینه نه لرې په زړۀ کښي
دا مینه داسي نه وی، هسي وائي له زبانه

په زړۀ باندې پرتي دی د سحر ډیرې خبرې
دا څنګه مي جانان ئي، ما جدا ساتي جانانه



## "ژوند"

ښکلي زندګی وه هسي تیره شوه
رنګینه مي قیصي وه رانه هیره شوه

یوړم ئي په مخه، طوفانونه وو
ژوند توره سیلي ده راچاپیره شوه

ماوې اے زړګیه! ته خوشحال به ئي
وارئي کړو خطا رانه، ساه مي تیرو بیره شوه

څو ورځي ژوندون وو، رانه تیر شولو
ښکلي زندګی وه د مرګی په جال کښي ګیره شوه

ښکلي مي ځوانی وه، خوشحالی وه بهارونه وو
راغلۀ خزانونه، راته سپوره شوه

سحر وو مازیګر شو، توره شپه شوله
قیصي د ژوندانه آخر کښي نوره شوه

## ﴿ رباعی ﴾

ده چرچا د دولتونو
ده غوغا د حسابونو
اوس تش مال دولت قبلیږي
ده هوا د نفرتونو



## " ځما شاعری "

زړۀ ورته صفا که، د صفا زړګی خبرې دی
ګوره بیا ئې ګوره د رسا زړګی خبرې دی

ما په ډیر اخلاص او په ډیر سوچ سره لیکلي دی
سترګي دے رنړا که، د رنړا زړګی خبرې دی

نه څه لوئي شاعر او نه ادیب یمه
زړۀ ځما خوږیږی د خفا زړګی خبرې دی

څه چې حقیقت وی، زۀ ئې وایمه
دا د مینې ډک، د دلربا زړګی خبرې دی

دا دنیا فانی ده آخر ورک به شو
ښکلي ملغلرې، د بینا زړګی خبرې دی

هر زړګی کښې درد او احساس چرته وی
دا خو د دردمند او د جدا زړګی خبرې دی

شعر دے، حكمت دے، فلسفه او مينه مينه ده
زړۀ زما پوهيږي د داناء زړګي خبرې دي

ډير خلق مې وليده، ما ډيره دنيا وليده
سحَر دلته آشنا دے د آشنا زړګي خبرې دي



## "اوسنی خلق"

مينه له خلقو تلې، وفا له خلقو تلې
احساس ئې مړ غوندې دے پروا له خلقو تلې

هسې بتان دي، لكه حيوان حيوان دي
پروا څۀ نشته پكښې، پخوا له خلقو تلې

څۀ خود غرضي غوندې دے، او څه لوئي غوندې ده
څۀ مخ مخې غوندې دے، ښكلا له خلقو تلې

څۀ پريشان د دنيا، څۀ سودايان د دنيا
حسن و ادا نه لرې، ادا له خلقو تلې

دا د پيسې دنيا ده، دا د مادې دنيا ده
ښكلې سحَر ئې نشته، سبا له خلقو تلې

## "رباعی"

ته لوئی کوې په څهٔ
ته مستی کوې په څهٔ
نن به ئې سبا به نهٔ ئې
بیا شوخي کوې په څهٔ

## "رباعی"

سنګ دلی په جهان شته
دلبری په جهان شته
که څوک هر څهٔ هر څهٔ وائی
ښهٔ یاری په جهان شته



## انسان ته!

راغلي ئې ته څه له اوس په ګډو وډو سر ئې
حقیقت نه څان خبر کا، دا ته ولې بے خبر ئې

دا لړه زندګی ده، دلته دم په دم نظر کړه
ګریوان کښې سر دننه کړه دا ولې ته خود سر ئې

قرآن کښې خو راغلی دی اِلّا لیعبدون
دنیا باندې سم پروت ئې نه مسلم ئې نه کافر ئې

سم کته ئې که وګورې ته وخت نا وخت چلیږې
د علم په رڼرا کښې که ته وګورې نو خر ئې

انسانه! څان خبر که دا خو هسې ژوندن نه دے
ظاهر باطن کښې ولې د اغیارو برابر ئې

ګډوډ ورسره نه شې ته تنها له خلقو ښهٔ ئې
په فرق ته راغلې ته سحَر ئې ته بهتر ئې

## ﴿ دنیا ﴾

ته ګورې نه دنیا ته دا دنیا د اوسیدو نۀ ده
او ګوره دنیا ته، دا دنیا د ښۀ کیدو نۀ ده

لوئي دی که واړه دی، ښکلي که، خنګه دی
ټولې تېرې ایمان دے دا دنیا د رغیدو نۀ ده

ته چې څۀ کوی و ګوره، دا خو زندګی نه ده
نقش به خامخاوي، زندګی د هیریدو نه ده

څه لره راغلي یو، او څه چارې زمونږه دي
نه پوهیږی خلق، دا دنیا د پوهیدو نه ده

څوک هم داسې نشته، چې د چا اوښکې هم اوچې کړی
بچ څه له دې خلقو، دا دنیا د لګیدو نه ده

هر څه دې پرېښودی دی، د خیال کوڅو له تلې ئې
ژاړه! ژاړه! ژاړه! دا دنیا د خندیدو نه ده



هله به شې پوهه چې دا ښۀ ورځې دې تیرې شې
پاتې به تۀ نۀ شې دا دنیا د بچ کیدو نه ده

څکه شعر وایمه، نازک زړګې مې درد کوی
کوم طرف ته لاړشو دا قصه د اوریدو نه ده

شکل د انسان وی، خو دننه یو حیوان وی
رنګه به وی رنګه، دا دنیا د جوړیدو نه ده

هسئې فریادونه کړم، زه سحّر آهونه کړم
ورانیږی، تباه کیږی دا دنیا د ښۀ کیدو نه ده

## غزل

تشه خله، تشه خندا ده، ربنتیا پاتې نه دي
دا ځنګه چل دے، څه دنیا، څوک د چا پاتې نه دي

په لباسی خندا، یارۍ، خپلوۍ به څه کړې د چا
د زړهٔ خپلوی، یاری، وفا او اشنا پاتې نه دي

پخوا به وې رېښتینې مینې، سم د خاورو خاورو
اوس خو قیصې د اشنائې او وفا پاتې نه دي

زړګو نه خوږ، مینه، اخلاص تلې دي
زړهٔ کښې دنیا ده، خوشحالی او خندا پاتې نه دي

هغه ساده ښکلې او پاک وختونه څهٔ شو یاره!
سَحر! زړونه همه سخا دی، څهٔ ښائست او ښکلا پاتې نه دي



## غزل

لاړې لاړې د بل چا شوې
همیشه له ما جدا شوې
زهٔ دې پرېښودم یوازې
دلربا داتهٔ د چا شوې
زما دا طمع خو نهٔ وه
ته خو داسې بې وفا شوې
ستا مې طمع د وفا وه
دلربا! تهٔ خو په شا شوې
دلربا! تهٔ خو زما وې
خود غرضه محبوبا شوې
درکتې نه شم دلبرې
د رقیب ځنې په خوا شوې
د ټول عمر غم دے راکړو
دا چې بل ته په خندا شوې
تا خاطر زما اونهٔ کړو
د رقیب سره په خلا شوې
اے سحر! ته رسوا شوې
وې تنها او بهٔ تنها شوې

## غزل

که ته افسر شولې نو څه به اوشي
که د آسمان غوندې هم بر شولې، نو څه به اوشي

د ګل ژوندن خو ګورې، دوه ورځې وي
که ته دلبر شولې، نو څه به اوشي

دې زمانې کله وفا کړې ده
که بحروبر شولې، نو څه به اوشي

نن دې اختیار، سبا به نه وي اختیار
که ته نوکر شولې، نو څه به اوشي

که تول وکړې هم په زړه کښې ځائې کړې
که ته چاکر شولې نو څه به اوشي

مینه به وي، ژوندن به نه وي مدام
که مې ځیګر شولې، نو څه به اوشي



له نظر بازو به نظر لاړ شي
که ښه نظر شولې، نو څه به اوشي

له رنړا ورځې پسې شپه رادرومي
که ته سحَر شولې، نو څه به اوشي

## يو خر ګاډئ والا

لويه خدايه، لويه خدايه، خره دې راکړه
خره دې راکړه، په دې لويه خدائي کښې
خر دې راکړو، خرګاډئ زما نصيب شوه
خواره، خواره برخه، په دې لويه دنيا کې کښې
زما د خېټې رزق، زما د بچو رزق
تا اېښې لويه خدايه، مې د خره په چالاکۍ کښې
که جوړيم، که ناجوړه، زۀ بوجونه چلوومه
ړکوومه، تشوومه، خرګاډئ، په بيمارۍ کښې
بچي زما په طمع، ټول کورخما په طمع
ته رزق ورکوې ربه! د خره په مزدورۍ کښې
رسوا غوندې کوڅو کښې، عاجز غوندې کوڅو کښې
لويه زندګي زۀ تيرومه، په وړه غوندې ګاډۍ کښې
دا ستا ټول حکمتونه، دا ستا ټول دي رازونه
د څۀ کمې دې تا سره، په لويه بادشاهۍ کښې



شکر شکر دے، خيربه مې په دے کښې وی
زړۀ مې دے مائل تا ته، پخپله فقيرئې کښې
خره زما نصيب ده، خر ګاډئ زما نصيب ده
خوشحال په عاجزۍ يم، ربه ستا په خدائي کښې
هر څه ستا له لوری، که فقير او که محتاج يمه
اېښې فلسفه دے دانسان په غريبۍ کښې
هر انسان ته ګورمه سحَر د زړۀ په سترګو
زړۀ خما نوريږی خدايه داسې زندګی کښې

## ___خلق څه شو _____

اے لارو کوځو! له تا نه خلق څه شو
ورک شوی چرته تلی له دنیا نه، خلق څه شو

پراته دی تورو خاورو کښې څهٔ غېږ کولي نشی
فنا شو همه لاړل له هر خوا نه، خلق څه شو

پراتهٔ دی مقبرو کښې، څلی څلی خلق ښکاری
پراته دی هلته غلی، دے فضا نه، خلق څه شو

فانی غونډې دنیا ده، عجیبه دا بې وفا ده
دنیا نه خلق څه شو، دے هوا نه خلق څه شو

راځی او ځی په مخه، له دنیا نه فنا کیږی
چې ناست به مې په خوا وو مې د خوا نه، خلق څه شو

وفا نه کوی چا سره، دا څه رنګ محبوبا ده
سحَر! وایه دلربا نه خلق څه شو



## وفا وفا

وفا وفا شه په ما، ما سره مینه وکړه
ته مې د زړهٔ ئې ښکلا، ما سره مینه وکړه

ژوندن خو تیر شه، په ارمان او په فراق
ته دلربا ئې ځما، ما سره مینه وکړه

ارمان ارمان دې کړمه، پریشان پریشان دې کړمه
ځما نیمګړې دنیا، ما سره مینه وکړه

د در ملنګ دې یمه، د در فقیر دې یمه
خیرونه غواړم له ته، ما سره مینه وکړه

ژوندن فانی دے یاره، لږ خو مې خوا له راشه
بیا به زهٔ نه یم اشنا، ما سره مینه وکړه

رنځور دے کړم دلربا، نازک دے کړمه ښکلا
وړې دې نشم جفا، ما سره مینه وکړه

سحَر سحَر یمه زهٔ، وږمه وږمه یمه زهٔ
اے د ګلونو سبا، ما سره مینه وکړه

## څه ښکلي زمانه وه

دا کومه زمانه وه کومه شوه زړګیه لږ رایاد که
څه ښکلي دردانه وه ورکه شوه زړګیه لږ رایاد که

هواګانې شوې بدلې، فضاګانې شوې بدلې
ته وګوره هوا ته، هواهم چَپَه شوه زړګیه لږ رایاد که

یو نورو وو له آسمانه، خدائی راوریدلو
نورتم شو ګیر چاپیره توره شوه زړګیه لږ رایاد که

کړه وړه دنیا ده، ترخه ترخه فضا ده
څه ښکلي زمانه وه، زمانه عجیبه شوه زړګیه لږ رایاد که

ځوانی وه خوشحالی وه د غمونو درک نه وو
ډیوه د زندګي رو رو مړه کیږی تته شوه زړګیه لږ رایاد که

سحَر! هر څه لاړۀ، زندګی دې فنا کیږی
څه! څه! له دې دنیا نه دا دنیا بدله شوه زړګیه لږ رایاد که



## دنیا څه ده!!

دنیا څه ده غر له ګټې چلول دی
په دروغو خفه زړۀ خوشحالول دی

دنیا څه ده، د غمونو غم خانه ده
خندیدل هسې په ځان پسې خندل دی

خدائیګو هسې بې وقوفه دا دنیا ده
وسیدل چرته دنیا کښې، ورکیدل دی

دلته څوک هم پاتې نه دی که څوک وائی
څوک راځی په دې دنیا، او د چا تلل دی

زۀ ماشوم وومه ته وګوره اوس زوړ یم
هسې باد په شان، رو رو فنا کیدل دی

که ته هر څه وکړې، هیڅ هم نشته
مرګ چې راشی، ټول هر څه دلته بائیلل دی

اے سحَر! دنیا پریږده خپل خالق له مائل شه
دنیا څه ده هسې ځان ستړي کول دی

## پریږده چې ژاړم

زړګي مې ډک دے ډیر له غمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو
سترګي مې ډکي دی له نمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

څما جانان زما یادیږی، مې د زړګی نه نو بهیږی
د یار یادونو کړم بے دمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

زۀ ناخبره یم له ځانه، هوش مې وتلي له ارمانه
خبر له راشه مې همدمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

طبیب د زړۀ مې چرته نشته، زخم مې ډیر دے ګل بدنه
مرمه زۀ داسي بې مرهمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

ستا ښکلي مخ مې نه هیریږی، څما زړګي کله صبریږی
زما د زړۀ ښکلي ګلفمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

چې طمع پرې مې شی له تانه، چې ستا یادونه نۀ کړم
ماته تۀ لار وښایه سمه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

زۀ ستا د ظلم نۀ یم، زه ستا د زور نۀ یمه
ستا ظلم زور به یادومه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

ته د سحر د زړۀ جانان ئي، ورته زړګي کښې څومره ګران ئي
ئي ته څما په زړۀ دننه، پریږده چې ژاړم په سلګو سلګو

---



## هغه ښکلا څۀ شوه

ستا د مخ ښکلا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده
ستا ښکلي رنړا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده

ستا هغه ښکلا څۀ شوه، مخ دې مړاوې شوې دے
ستا دخلي خندا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده

سم به موسپدلي ته، ټوله مینه مینه وے
ستا د زړۀ وفا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده

تا پروا د چا نه کړه څومره لا پروا به وے
نن هغه دنیا څه شوه ټوله درنه تللي ده

وجود دې راکوږ شوې دے، مړاوې مړاوې شوې دے
د ژبې دې وینا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده

ورکه دې ښکلا شوله، ورکه دې خندا شوله
سحر! ستا ادا څۀ شوه ټوله درنه تللي ده

## دا ولـــــي!

دا ولــــي يــو انســـان، دبـل انســـان دښـمـن شــو
بـدرنـګـه، بدصورتـه شـو پـه خـوی بانـدې پـمـن شـو

لـقـد حـلـقـنـا الانســـان فـــی احســن اتـقـويـم
الله خـو داسـي کـړی دی، پـه خـوی بـانـدې خیـچـن شـو

ســاده غـونـدې دنیـا وه، ســاده غـونـدې ژونـدن وو
ځـلا د چـمـن ورکـــه شـوه ویـرانـــه دا چـمـن شـو

اورونــــــه دي وریــــــړی د حســـد د فـــــریـــــب
ربنتیـــاؤ نــــه خـــالـــی، خـــالـــی د زړۀ وطـن شـو

ســـر سبـــزه وو شــــاداب ســحّــر ګـلان ګــلان وو
هـمیـــش چــي پـــه بهــار وو نـن وګـوره ګلخن شو



## محبــوبا بــه په بــام نۀ وی

دا دوران بـــه مـدام نـــۀ وی تـورو خـاورو لـــه بـــه ځـــي
دا ژونـدن بـه انـعـام نـه وی تـورو خـاورو لـه بـه ځـي

دا چـي تـۀ ورسـره نـاسـت ئـي، مشـغـولـه کـه لـه دلبـرو
میـســر بــه ګـل فـــام نـۀ وی، تـورو خـاورو لـه بـه ځـي

سبـا بـه خـوشی دا مـحـل وی، تـنهـائی بـه پرې خوره وی
مـحـبـوبـا بـه پـه بام نـه وی، تـورو خـاورو لـه بـه ځـي

دا چـي تـه ئـي پـه غـټـو ویـنـي، چـي تشـیـړی او ډکـیـړی
ډکیـدل بـــه مـدام نـــۀ وی، تـورو خـاورو لــه بــه ځــي

کـلـه سـحّـر کـلـه مـابـام وی، سـلسـلـه د ژونـد روانـه
هـمیشـه بـه مـابـام نـه وی،تـورو خـاورو لـه بـه ځـي

## مــــورتــه!!

تورو تيرو کښې رانه ډوبه شولې

تا به زۀ چرته ګورم

زۀ دلته سپو و خوړم------ دلته زمرو و خوړم

ماله ارمان راځي --------ماله ژړا راځي

دنيا کښې نه ئې چرته------

مياندې بيا چرته راځي-----

خوئندې بيا چرته راځي------

دا خو--------

يو وخت وي تير شي

څۀ دلربا وختونه----

وي محبوبا حيسنه---

زما نه نۀ هيريږی

زما زړګي خوږيږی

بغير له تا يوازې ------

زۀ ستا لټون کوومه



زۀ ستا ------

سوچونه کوم

په هيڅ يو ځائے کښې نه ئې

ته خاورې شوی مورې!

هر څۀ دی ---- خوشي خوشي

هر څۀ ساړۀ ساړۀ دی

ډير ستا يادونه راځي

ډير ستا دردونه راځي

مورې!---------

زما د زړۀ نه نۀ ځې

زما د خياله نه ځې

زما نه نۀ هيريږې ---------

زما نه نۀ هيريږې ---------

زما نه نۀ هيريږې ---------

## ـہـہ هر څهٔ د بدل بدل ـہـہ

ګرانه زندګی شوله هر څهٔ د بدل بدل
تروله بندګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

هسې څوک خپلوی نه کا، هسې څوک یاري نه کا
څنګه زندګی شوله ، هر څهٔ د بدل بدل

رسمونه رواجونه دي، هسې دے تړون تړون
تروله ګندګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

په ژبه کښې شکرې دي، د زړهٔ دننه خیرې دي
ښهٔ ترې ملنګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

هسې بس دښان سرهښان یو ځاې کولے شي
څه کړم معامله، تروله زنګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

بے طمعې تهٔ ښهٔ کوه، بې بدلې هر څه کوه
بیا ښهٔ زندګی شوله هر څهٔ د بدل بدل



نُور له زړونو وتې دے دننه ده تیاره تیاره
زړونو کښې تنګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

اے سحَرا چاته وائې خلق خو هیڅ نه آوري
زندګی نه، دورنګی شوله هر څهٔ د بدل بدل

**\\\\ نادانان ورته خوشحاله **

ژوند عــجبه ننداره ده

ژوند خوږه غوندې قصه ده

ژونـد عــجبه مسخــره ده

په رکاب باندې دې پښه ده

په ساعت کښې به ژوندی ئې

په ساعت کښې شنه خزه ده

ته به وائې ژوندن ډیر دے

خو چې ګوری یو لمحه ده

په ساعت کښې به ماشوم ئې

څو مره زر دې شونډه شنه ده

هر څوک دا وائی چې زهٔ یم

څلې څلې ئې د خاورې، یو ذره ده

څو مره زر سرے راوېښ شی

ژوند د خوب یوه جوته ده

نادانان ورته خوشحاله ___



دا هوښیارو ته پنجره ده

د دنیا هیڅ حاصل نشته

یو فریب یوه دهوکه ده

اوس به وی سبا به نه وی

د اوبو یو غلغله ده

دا وریږی کله کله

د باران یوه شیبه ده

په یو دم کښې هر څه پاتې

د سَحر یوه لحظه ده

## د کوڅو نه خلق څه شو

چي په کوڅو کښي ګرځيدل به هغه خلق څه شو
په ځان غرا چي، نازيدل به هغه خلق څه شو

چي په کورونو کښي به ناست وو خپل ژوندن به ئي کړو
چي د يو بل نه ځاريدل به هغه خلق څه شو

پته ئي نه لګی چي څه شو، چرته تلی، څه شو
لارو کوڅو کښي خنديدل به هغه خلق څه شو

ساده ساده به وو، ژوندن به ئي ساده کولو
چي د يو بل نه ځاريدل به هغه خلق څه شو

هيڅ ئي په خيال او په زبان کښي کړليچونه نه وو
چي ئي صفا صفا وئيل به هغه خلق څه شو

اوس راشه وګوره دنيا د دروغژنو شوله
چي به خبره ژړيدل به، هغه خلق څه شو



چي په لمنو به ئي اوښکي وچولي د بل
په هر انسان چي خوږيدل به هغه خلق څه شو

اوس خو دنيا د بے حياؤ او بے شرمو خلقو
چي د حيا نه شرميدل به هغه خلق څه شو

ولي افسوس کوي سحر، ته د تلو خلقو
چي د هر چا قربانيدل به، هغه خلق څه شو

## اے خلقو!

چي په الله باندي ډير ګران وو هغه دين مو څۀ کړو
چي محمدؐ ئي قدردان وو هغه دين مو څۀ کړو

څوک ئي پروانه لري، دين څه وي، مذهب هم څۀ وي
چي پري مئين عليؓ، عثمانؓ وو هغه دين مو څۀ کړو

ځان ئي لوګي کړو خو باطل ته ئي سرتيټ نه کړلو
چي پري قربان حسنؓ حسينؓ وو هغه دين مو څه کړو

په ډيره ګرانه ئي ساتنه او پالنه شوے
چي پري مئين ټول صحابانؓ وو هغه دين مو څۀ کړو

ډکه دنيا کښي به يوازي او خالي لاسونه
چي ئي پري ځار کړله دنيا، څه بزرګان وو هغه دين مو څه کړو

دا خو څه ټوقي مسخري نه وے تا ټوقي کړلے
دا راليږلي پاک سبحان وو هغه دين مو څه کړو

دا خو جبرائيل د اسمانونه د لري راوړو
محافظان چي ئي نبيان وو هغه دين مو څه کړو



## ﴿ اے د ګلو باغه ګلستانه! ﴾

اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځارشمه له تانه، يم له تانه زۀ قربانه

ستا پاکو اوبونه، ستا د پاکي خاورې نه
ستا د پاکي زمکي نه، ستا پاکي غلي نه
ستا د دنګو غرونو نه، ستا هرې چيني نه
ستا ښکلي صحرانه، ستا د هرى شګي نه
تن ځما پيدا دے، دا ستا ښکلي هوانه

اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځارشمه له تانه، يم له تانه زۀ قربانه

ستا د پاکي زمکي نه پيدا مي مورو پلاردى
ته زمونږ وطن ئي زمونږ زړونه په قراردى
جذبي د محبت مي، په زړګي انبار انبار دى
ستا د ښکلي زمکي، احسانونه په ناتاردى
ګران ئي په مونږ ځکه له همه ګرډي دنيا نه

اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځار شمه له تانه، یم له تانه زۀ قربانه

اے زما وطنه! ستا په خاورو لوئیدلي یم
ستا په پاکه زمکه په خپو سو باندي تلي یم
کله غورزیدلي یم، کله پاسیدلي یم
ښکلي ستا آزاد و فضا ګانو کښي لوي شوي یم
اوس ښکلي زلمي شوم، قربانیږم به له تانه

اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځار شمه له تانه، یم له تانه زۀ قربانه

اے زمونږ وطنه! دښمنان په تا راتلي نشي
زړۀ ئي درته کیږي ډیر، خو دا جرأت کوي نشي
تا راغورزول غواړي، مقام ته دي کتي نشي
دښمن به په تاځنګ راشي داچرته هم کیدي نشي
سر به ورله مات کړو بیا به ګرځي سر ګردانه



اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځار شمه له تانه، یم له تانه زۀ قربانه

ژوند کښي مو وطن ئي، هم په مړیني به وطن ئي
او دۀ به ستا په غیږ کښي، تر قیامته به مدفن ئي
مونږ وطنه! ستا یو، تۀ ضامن زمونږ د تن ئي
ته ګلشن ګلشن ئي، ته چمن چمن ئي
ستا په پاکه خاوره کښي مو کوردي ښۀ روښانه

اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځار شمه له تانه، یم له تانه زۀ قربانه

اے ځما وطنه زۀ به ستا سندري وایمه
کړمه ستا صفت به د وفا سندري وایمه
ژوند کوومه تا کښي، زۀ د تا سندري وایمه
ښکلي ستا هوا ده د هوا سندري وایمه
ته ځما دلبرئي، زۀ ځاریږمه له تانه
اے ځما وطنه پاکستانه! اے د ګلو باغه ګلستانه!
ځار شمه له تانه، یم له تانه زۀ قربانه

## رباعــی

هــمیشـــه اوســـه خـــامــوشــه بې مـطلبــه مــهٔ وئیـږه
دمــعــنــې او دمـطـلـب شــه بې مـعـنی تــهٔ مــهٔ غـږیږه
پــه خپـل ځـان بــه نــهٔ پـوهیږې پــه جهان بــه نــهٔ پوهیږې
خــامــوشــې ښـکـلــې طـاقـت دې ،کـه دانـا ئـې و پـوهیـږه

## رباعــی

تــهٔ یــاري لــه هــر چــا مــهٔ کړه دلبري له هـر چـا مـهٔ کړه
نـوکـري لــه هــر چــا مـــهٔ کړه ، دلـداري لـه هـر چـا مـهٔ کړه
خـلق څـو رنـګـه پیـدا وي ، ځـنــې ځـنـګـه ځـنې څنګه
ښـهٔ راتـول اوســه پـه ژونـدکښـې تـه، زاري لـه هـرچـا مهٔ کړه



## ﴿ ډیــر خطــر دے ! ﴾

لــه نیسـت نــه پیـدا شـوے تــه پــه هیڅ نــهٔ پـوهیـدلې
چــې راغـلــې دې دنیـــا تـــه، تـــا حـرکـت نــهٔ شـو کـولې

حیـوان چـې ځـنـګــه ژونـد کـــا، تـه هم هغسې حیوان وې
بــې حســـه، بـــې مـجــالـــه ،تـــهٔ لـــه مـوره زیــږیـدلــې

بــې وســــه وې مـخـتــاجـــه وې لیـوالـــه وې ضـعیـفـــه
رو رو دې حـــرکـــت کــړلـو ، لـــه ځـــا یـــه پـاسیـدلــې

چــې لــوئـــې شــولـــې بـلا او اژدهـــا درنـــه شـوه جـوړه
داړل کـــوې ، شـــلــول کـــوې هـــر څـوک دی تـــا چیچـلـې

ګـــریـــوان کښـــې ســـر دنـــنـــه کـــه چـې څـــهٔ ئـې!
اشـــرف ئـــې کـــائـنـــاتـو کښـې تـــا ځـــان دې غـورزولـې

انســـان ئـې تـــهٔ انســـان ئـې خپـــل مـقـام لـره تـــهٔ فـام کړه
مـــکـــا ن کښـــې هـــم بادشـاه ئې، اسـمـان تــه هـم ختلـې

پـــه ســـوچ دې زنـــدګـــې کـــوه اے یـــاره ډیــر خطـر دې
لاهــو بـــه پـــه سیـلاب شـــې ، بیـــا بـــه نـــهٔ شـې راختلـې

ســحَــرا دنیـــا شتـــه دے خـوتهـذیـب او اخـلاق نشتـــه
هـــر څـــهٔ دې پیــژنـدلی ،خـو خپـل ځـان نـــهٔ شـې کتلـې

# هیر دې کړمه!

هیر دې کړمه جانانه! هیر دې کړمه
لاړې رانه! جانانه تیر دې کړمه

زماوه مینه مینه، ستا وو فریب دلبرې
مینه اوس چا سره کړم، جانانه ګیر دې کړمه

اوس فریادونه کړمه، زۀ تش آهونه کړمه
سورې سورې دې کړمه جانانه شور دې کړمه

په طمعو طمعو مې زړګي ستړې شو
عمرونه تیر شو رانه، جانانه زور دې کړمه

سحر! بیا به چاله، داخپل زړګي ورکړمه؟
خدائیګو کچه دې کړمه، جانانه تور دې کړمه



# "له ارمانه زندګی"

تاؤبه درله سر کړی ډیره ګرانه زندګی ده
ستړې به دې زړه کړی له ارمانه زندګی ده

هسې به پریشانه په سوچونو په فکرونو
شې به پشیمانه، پشیمانه زندګی ده

لټون کوې بې واره، لیونی لیونی ګرځی
حیرانه به دې زړۀ کړی دا حیرانه زندګی ده

هر څۀ به حاصل کړے، اطمینان به حاصل نۀ کړے
تل به پریشانه، داپریشانه زندګی ده

لاس لرګه له دنیا نه، هسې شوراو هسې شر دے
زړګی به دے راډک کړی دا ستومانه زندګی ده

داژوندن هوا، دافنا ده، یوه ورځ ده
ښۀ کۀ زندګی ده، درویشانه زندګی ده

## رباعی

ډیر عمر مې کړو تیر، زړهٔ مې تنګ شو له دنیا نه
ما ولیدل ډیر ډیر، دلته تیر شومه هر چا نه
انسان خپل غرض غرض کا، خپل مطلب پوراپورا کا
طمع کړه له ربّ رحیم نه، طمع مهٔ کړه له دادا نه

## رباعی

ژوند چې کله تیر شی، نو بیا کله راځی
چیپې چې کله لاړې شی نو بیا څهٔ له راځی
ژوند یو وارې ژوند وی په دې پوهه شه عالمه
ستا په بې حسۍ او ناپوهئ ماله اشنا ګله راځی

## رباعی

زهٔ به څهٔ وایم له خلقو تاسو خپله باندې ووینئ
ځنګ روزګارکوی داخلق تاسو باندې لاندې ووینئ
نهٔ انسان نهٔ مسلمان وی نهٔ پښتون او نهٔ څهٔ بل څهٔ
تاسو هر څهٔ هرڅهٔ ووینئ هر څهٔ ځانګې ځانګې ووینئ



## غزل

څهٔ راُغلم دلته او څهٔ مې اوکړهٔ دلته
بد مې ځومره اوکړه، کهٔ ښهٔ مې اوکړه دلته

دنیا ته چې زهٔ راغلم نو ښهٔ هوا پرست شوم
هلته مې جانان سره وعدې وے، او نَه مې اوکړه دلته

څهٔ غرض دنیا سره، څهٔ غرض هوا سره
ټول ګناه شومه، څهٔ مې اوکړهٔ دلته

نن خو دلته یمه زهٔ، سبا به دلته نه یمه
ځومره خطاکار شومه، زړهٔ مې وکړه دلته

دا دنیا تیرېږی زر، عمر فنا کیږی زر
سحر ځان ته وګوره وړه دې، اوکه پړه مې وکړه دلته

## ﴿ وختونه درومی یاره! ﴾

دادي وخت دے اوس ښهٔ رو غ ئي ، سبا بيا بهٔ څهٔ کړي
عاقله !واوره بيا به ژاړي په ژړا به څهٔ کړي

سترګي به لاړې شی ،اعضاء ،حسونه کاربه نهٔ کړي
دنيا نه واوړه څهٔ حاصل کا، په دنيا به څهٔ کړي

وختونه درومی یاره ! بيا نهٔ راځی---
نن خو ژوندي ئي بيا بيګا به څهٔ کړي

تهٔ خو سندري د دنيا کړي ددنيابُلبله !
خُله به دي بنده له چغارشی بيا چغا به څهٔ کړي

ډير وفادار فرمان بردار دلربا ئي ياره
درنه به ورکه دلربا شی په وفا به څهٔ کړي

په غوږو واوره دسّحر د حقيقت خبري
خپله دي کټه هم تاوان دي بيا ځما به څهٔ کړي



## آخري سلام

واخله آخری کلام ، واخله آخری سلام
واوره مي دزره کلام، واوره مي د زړهٔ پيام

لاړي ته ورک شولے ، له دے محفل نه
لاړي ته اووتي، زما له دل نه
لاړي فنا شولے ، له دے بورجل نه
لاړلي لاړلي ، له لوئي غوبل نه
لکه بورا شوي ، تهٔ جُدا له ګل نه
ورمه خوره شوي دښائسته کاکل نه
وائيمه د زړهٔ پيغام ،په مينه ، په ډير اخترام
واوره مي د زړه کلام ، واخله مي د زړهٔ سلام
واخله آخری کلام ، واخله آخری سلام
واوره چي دزره کلام، واوره چي د زړهٔ پيام

علم دے سينه کښي وو ، تا خپل جلوت اوښودو
څومره دے خدمت اوکړو ،تا شرافت اوښودو
تا ښهٔ سبق اوښودو ، تا ښهٔ عظمت اوښودو
څومره دے عزت اوکړو ، تا ښهٔ عزت اوښودو
خلق دے بينا کړله، تا بصارت اوښودو
تا خو تمامی عمر ، ښهٔ حقيقت اوښودو

واوره مي دزړهٔ کلام ،واوره مي د زړهٔ پيام
واخله آخري کلام، واخله آخري سلام

هلک وي پکښي ځوان شولي
غريب وے پکښي خان شولي
ځوان وے اوس پښيمان شولے
مست وے اوس بے جان شولے
له ژونده تېول قربان شولے
دهر چا، ځکه جانان شولے

واخله مي دزړهٔ بيان، خفه دے په تا هر ګلفام
واخله آخري کلام ،واخله آخري سلام

تهٔ بنا وټي نهٔ وے تهٔ خو انګريزي نهٔ وے
تهٔ خلوص خلوص وے ټول تهٔ شرارتي نهٔ وے
صبر دے مدام کړے ،تهٔ څهٔ حرصي نهٔ وے
ژبه دے ساده ساده ،هيڅ دے بد نيتي نه وے
ټول وے تهٔ حيا حيا ،تهٔ خو فحاشي نهٔ وے
تل دے محنت کړے دے تهٔ خو وخت پاسي نهٔ وے



تل به يادومه دے ، صاحبه ستا ساده کلام
واخله آخري کلام ، واخله آخري سلام

ولے رانه لاړلے ، تهٔ له مونږ جُدا شولے
ولے نن تنها شولے ، لاړلے فنا شولے
مونږ دے چا ته پرېښودو ولے بے وفا شولے
ختمه زندګی دے کړه ځکه نن جُدا شولے
لاړلے فنا شولے، ګوري چي د چا شولے
ځی چي نور محمد صاحب ، زړګيه په ژړا شولے

ولاړوے تهٔ په ښکلی بام ، وے تهٔ دهر چا غلام
واخله آخري کلام ، واخله آخري سلام

خفه نن استاذان شولو ، خفه ټول شاګردان شولو
خفه هر يو زړګي شولو ، هر ذهن پريشان شولو
تا ګورو ، تهٔ به نهٔ ئے ، ستا ديدن راته ډير ګران شولو
مکتب زمونږ ويران شولو ، نن خوشي دا ميدان شولو
خفه خفه مي زړهٔ وی تل ، نن ستا په تګ ګريا ن شولو

دعا راته کوه یاره آخری شولو مي داکلام
واخله آخری کلام ،واخله آخری سلام

(”یادکیرنه“ دا نظم په ۳۱ دسمبر ۲۰۰۹ء دزیارت په ورځ
نورمحمد صاحب محله دیوان خیل لوند خوړ دریټایر
کیدو په آخری ورځ ګورنمنټ هائی سکول لوند خوړ په
” بزمِ ادب “
کښي لوي غونډې ته پخپله ژبه وئیلي وو۔)



## غزل

غواړې دادنیا پسې ګرځې لیو نو پشان
ځان ورته لوګي کړې، لیو نې د سپیلنو پشان

بل فکر ئې نۀ وی خو دنیا دنیا په ژبه کړی
دا خس وخشاک دي ، دي ئې ګڼړی دُردانو پشان

دومره ډوب دنیا کښې چې، ځان جهان ترې هیر دے
سوچ او کړه سر تیټ کړه ، ددرنو په شان

ډیره کۀ دنیا کړې نو به څۀ وشي ---
خاورو نه به لاندې شي تۀ هم د مخکښینو په شان

هر وختې د تللو انتظار کوه دیره نشي
اوسه دي دنیا کښې اے سحَر میلمنو په شان

## زړګیه لیونیه!

ښکلي زندګي وه په سبا سبا کښې لاړه
ښکلي زندګي وه په بیګا بیګا کښې لاړه

راغله خزانونه ، بهارونه رانه لاړه
رو رو فنا کیږم ، په جفا جفا کښې لاړه

زړونو کښې تیږې دي ، تورې کوکې تو غمونه دي
زړګیه لیونیه ، په وفا وفا کښې لاړه

عبث مې زندګي کړه هسې تیر شولو وختونه
لاړه زندګي مې په ګناه ګناه کښې لاړه

غمونه زندګي وه ، دردونه زندګي وه
زړګي پکښې خوږیږې په ژړا ژړا کښې لاړه

موندلي زندګي مې هسې ورکه کړه پخپله
راکړې عطیه وه، په خطا خطا کې لاړه

عجبه ئي اے وخته! بیا دې څوک نشي موندلي
سحّر! زندګي دې په دنیا دنیا کښې لاړه



## څه نادانه نه یم

که زه یم غلي څه نادانه نه یم
که زه خاموشه، څه پریشانه نه یم

دا خاموشي خو د حکمت حصّه ده
دا خاموشي دعبادت حصّه ده

زه له فطرته له ازله داسې
زه له قدرته له اوّله داسې

چې پرې څوک نه پوهیږي زه په هغې پوهیږم
دزړه مې سترګې بینا زه په هر شي پوهیږم

دابې وفا دنیا ده نه څما ستا دنیا ده
څکه غرض نه لرم ، څما جدا دنیا ده

دنیا ته سوچ وړې یم په کډو وړو سر دی
هډو څه سوچ نه لري څنګه ښکاره خود سر دی

دنیا پرست دی همه ، هوا پرست دی همه
څومره نادانه دنیا ، ماده پرست دی همه

نه امیری مې خوښه ، نهٔ مې شاهي ده خوښه
نهٔ افسری مې خوښه ، نهٔ سلطاني مې خوښه

ظاهر قفیر یمه زهٔ، زړهٔ د بادشاه لرمه
ګدا ګدا یمه زهٔ، زړهٔ د یو شاه لرمه

نهٔ مې رسمونه لګی، نهٔ رواجونه لګی
دادبې دردو دنیا ، څما دردونه لګی

دادنیا دوه ورځې ده، فاني فاني دنیا ده
دخوب وخیال دنیا ده ،خیالي خیالي دنیا ده

چا تري نه څهٔ جوړ کړی، په حقیقت پوهه شه
تهٔ په خپل رب پوهه شه، ئې په قدرت پوهه شه

کوی سحؔر د تصوف او دانائی شاعری
واوره داشعر مې د نظم دلته شو آخری



## " پښتوا خوداسې نهٔ وو "

پښتوا خو داسې نهٔ وو ، لکه اوس چې دادنیا شوله
ساده ساده دنیا وه ، زندګی ټوله خندا شوله

هره خوا د کرکې ، دښمنۍ اورونه بل شولو
مینه مینه لاړه ، زندګی ټوله جفا شوله

چرته کښې مونږ پټ شو ، خلق ټول درنده شوې دی
زړه نه خندا لاړه ، زندګی همه ژړا شوله

امن په کروهونو چرته لرې لرې تلې دې
خیر ښیګړه لاړه ، زندګی ټوله رسوا شوله

ټیټ کړه سر مسلمه ، لږ پخپل ګریوان کښې اوګوره
ولې تهٔ ګډوډ شوې ، ګډو وډه دې سودا شوله

اے سحر ! مهٔ وایه، د زړهٔ خبرے ولې کړے
زړهٔ څما خوږېږی نو دا شعر مې وینا شوله

## ”گناهونه“

آخره زمانه شوه بڼه په جار دي گناهونه
پروا او احساس نشته په ناتار دي گناهونه

مالونه دولتونه لوی مقصد د زندگي شو
یوځلي خدائیګو نۀ شوه په باربار دي گناهونه

په څلوری باندې سر شو، کړی ګناه ، ګناه نۀ ګڼړی
روانه سلسله ده ، په قطار دي گناهونه

تپوس به له دي کیږی ، دا توقي نۀ دي یاره!
ورځے به څنګه خدائي له ، په انبار دي ګناهونه

دانسان او د حیوان څۀ دلته فرق پاتې نۀ شو
انسان شولو حیوان، او په زارزار دي گناهونه

په بیرته جوړ دجهل تورتمو نه راواپس شو
سحر! تۀ پرې سوزې ، ښۀ بیسیار دي گنا هونه



## اے بمونو والا!

داراتـه ووایه ګناه دے خلقو څۀ کړې ده
تا پسې داسې دابمونو اراده کړې ده

واورۀ ښۀ واوره مسلمان د مسلمان رور دې
تا دا د چاسره پیسو باندې وعده کړې ده

دا د چا پلار، دچا وی مور ،دچابچی وی ګُله
دابې ګناه وی ،تائي څنګه تماشه کړې ده

دفقیرانو ،عاجزانو ، آزارونه اخلې
توبه توبه که له ازاره ، تا ګناه کړې ده

دوه ورځې ژوند دے تا په خلقو باندې اوُربل کړے
مذهب کښې وګوره ، ددین تا څۀ معنه کړې ده

امن که امن تۀ لږ ربّ ذوالجلال ته ګوره
دربّ مخلوق سره دے لویه مسخره کړې ده

ښځې سر تورې دي کړي ښځې بې کوره دي کړي
زرونه تالا والا شو، تا عجيبه کړي ده

خواروې ولې ته دقوم وارۀ وارۀ کلونه
ظالمه پوهه شه، تا قوم سره دهوکه کړي ده

لړ په زير وګوره انسان ته، ښکلى ښکلى مخ ته
قوم سره مينه کړه دوى داخۀ ګناه کړي ده

اوښکې ئې اوچې کړه انسان دے دعاګانې به کړى
ستا سره دا نۀ ښائى داتا څۀ قصه کړي ده

سحَر! وايه په ادب او په شعرونو کښې ته
وطن او قوم ته دي دُعا هره لمحه کړي ده



## قبر

تورو تيارو له به ځو
ډيرو لمحو له به ځو

لرې ميرو له به ځو
خوشې ورشو له به ځو

سترګې راوباسې کۀ ؟
تورو تيارو له به ځو

ستورى، سپوږمى نۀ لرى
تک تورتمو له به ځو

بيا به راتلۀ چرته وى
تش اوسيدو له به ځو

دروازې بندې به وى
تورو تنبو له به ځو

ذرې ذرې به پکښې
خاورو ذرو له به ځو

بندی قیامته پوري
کلکو پنجرو له به ځو

هلته به یار و دلبر
دیار لیدو له به ځو

هلته رنړا به نهٔ وی
بس توروشپو له به ځو

چُپه چپیا به هلته
تش خاموشو له به ځو

دشپې سحَر به نهٔ وی
ډیرا وږدو شپو له به ځو



## دزړهٔ درده!

دزړهٔ درده! په قلار شه ستا علاج راسره نشته
ځه خوږیږه ځه دردیږه ستا سرتا ج راسره نشته

په زر زور یارانی نشی ، په زر زور دلبری نشی
مینه مینه یم په زړهٔ کښې ، او څهٔ را ج راسره نشته

ځمانادان زړګیه! محبوبان کله خپلیږی
په څهٔ به زهٔ نزدي شمه ،معرا ج راسره نشته

دستو ردزماني دے بادشاهانو ته سرټیټ وی
فقیریمه حقیرئمه ، څهٔ تا ج راسره نشته

زړګیه ځه دردیږه ویني زوي دي بهیږه
سحَر ساه دي خیږی څهٔ علا ج راسره نشته

## غریبان

نوي دنیا شوه ،نوي خلق غریبان پکښې څوک نۀ قبلوی
ښکلې دنیا شوه، ښکلي خلق م سادګان پکښې څوک نه قبلوی

دادچرچو دنیا شوه ، دادپیسو دنیا شوه
هسې زړۀ مۀ چوه تۀ، داسې خواران پکښې څوک نۀ قبلوی

اوس د نخرو دنیا شوه ،دمسخرو دنیا شوه
دا د دروغونو دنیا ، داصادقان پکښې څوک نۀ قبلوی

نۀ دے خپلوی به که څوک ، نه به یاری دے که څوک
چې څو مالداره نۀ وی، داعا جزان پکښې څوک نۀ قبلوی

خیر دے کۀ خروے نو هم ، چې دنیا دارئې نو ښۀ
په دانائۀ دې څۀ کا ، دادانایان پکښې څوک نه قبلوی

ډیري یارئې ،دوستې مې زړۀ سترې که
چې خوار عاجزوې کله ، داسې یاران پکښې څوک نه قبلوی

کۀ تۀ یو بزرګ دزمانې شې نو څۀ---
سحره نۀ قبلوی، خوارفقیران پکښې څوک نۀ قبلوی



## اے باغه!!

اے باغه تۀ دچا وے ، اوس دچا شوے
وفا درپکښې نشته دادچاوے اوس زما شوے

دنیا ارتې منګې دے ، کله لاندې کله باندې
ډکیږی او تشیږی ، کله هغه کله دا شوے

مابه هم یو ورځ، خړ سیلاب لاهو که
دروازې دباغ وراغ مې، کله بندې کله واشوے

په یو حال کښې چې څوک دې هغه الله دے
پرون تۀ ښکلې سمسوروے نن فنا شوې

تۀ باغ وے ښکلې وخت وو، بُلبلانو به نعرې کړې
اے باغه ! کله ځنګه ، کله ځنګه ، نن غوغا شوے

سحَر! څه د چادې ؟ دنیا هسې غولول که
حقیقت کښې نۀ د څوی، نۀ د دادا شوے

## اے وخته!

کاش چي بيا راغلي اے وخته !
ورځو شپو کړلو نا وخته
بيا ماشوم شمه هلک شم
چي هيڅ درد مي نۀ وی چرته
چي زهٔ روغ شمه گرزيږم
کله هلته ، کله دلته ----
مي ځوانی د موراو پلار وي
چي زۀ شاه وي بے له تخته
لاپروا کوڅو کښي گرځم
په کور راشم مسّرته---
کاش چي بيا راغلي اے وخته
چي ځوانی راکړي په بيرته
د ژوندن څنګه دستور دي
سترګو رپ کښي شي ناوخته



ډک ګلونه مي تا لاشو
زۀ به څۀ وائم له بخته
کاش چي بيا راغلي اے وخته
څومره ډک ئي له حسرته
تاکښي څومره فلسفه ده
تۀ يو راز ئي له قدرته
تګ ، فنا د تا دستور دي
څومره ډک ئي له هيبته
تا خفه زما زړګي کړو
سحّر وائي له عادته

## رنګینی به خاورې خاورې

دا مور او پلار به ورک شی ، دا ځوانی به خاورې خاورې
دا کورونه به تس نس شی، خوشحالی به خاورې خاورې

نن څومره ښکلې ښکلې ، دا تۀ څو رنګه مستی کړې
دا ورځې شپې به واورې، دا مستی به خاورې خاورې

نن ډکه دې جولۍ ده چې شیندې ئې لورپه لورې
سُورئۀ به دې لمن شی دا جولۍ به خاورې خاورې

د پاتې چرته نۀ ده ، دا دنیا ټوله فانی ده
رنګینی به خاورې خاورې زندګی به خاورې خاورې

هوا ده چې تیرېږی ، او به دی چې بهیږی
هر څۀ خاورو کښې پټیږی، شی هستی به خاورې خاورې

دوه سترګې دې ځلور که، هر قدم سره احتیاط کړه
کړاوۀنه ټول بې ځایه، شی تادی به خاورې خاورې



## قطعه

حیران یمه دې خلقو ته ، په هیڅ هم نۀ پوهیږی
بې ټوله زندګی کړی ، بې مهاره پکښې تلۀ کړی
په دوارو جامو شخوند که ، پروا دځان هیڅ نۀ که
روان په کږه لاره ، هر څوک پکښې دوی ملۀ کړی

## سنګ مزاجه!

سپینه مې شوه ګیره خو زړګې هډو پوهیږی نه
لاړه زندګی ټوله ، زړګې زما سمیږی نه

هسې کوږ لړګې ئمه په بار کښې زۀ راوتې یم
روڼ شومه ، رژیږمه ،نیغیږی نه

مخ مې ټول راګونجی شو، وجود مې ګونجی ګونجی شو
ساه اخستې نۀ شمه خو نیت ځما ښۀ کیږی نه

هسې به لګیا ئمه بې پیچه به غرېږمه
ژبه مې چارئې شوه خو اودرېږي نه

ترس راکښې نشته دی، په خوی لکه زمرې ئمه
هسې سنګ مزاجه یم دردېږي نه

شپې ورځې مې تېرې کړې دنیا مې ټوله اولیده
بې مینې زړګې مې دے په چا هډو خوږېږي نه

زۀ سحر به څۀ کوم، زۀ سحر به څۀ وائم
ګورمه چاپېره مې زړګې ځکه وئېږي نه



## غزل

تاله مینه څنګه درکړم زۀ وفا له کومې راوړم
دا بازار کښې چرته نشته زۀ خندا له کومې راوړم

جدائې ذرې ذرې کړم، ستا انکار راله زړۀ وچوؤ
هیڅ امید د مینې نشته، دا صدا له کومې راوړم

خلـه بهر خوږه خوږه، زړۀ دننه کړه ښائسته
نۀ دننه، نه بهر، زۀ ښکلا له کومې راوړم

ډېر خوند، ډېره مزه کوی د مینې دنیا ګئې
مینه مینه لټومه، دا دنیا له کومې راوړم

خواره برخه مې نصیب ده دلبرې مې دلبر نۀ که
زۀ سحر له کومې راوړم زۀ رنړا له کومې راوړم

## ځما زړهٔ درپسي ژاړی

همیشه دے یادومه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره
دا په زړهٔ به ټول لیکمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

ستا خوږي خوږي خبري ، تا وعدي چي به کولي
زهٔ په تا به پائیدمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

مي زړګي له تا خفه دي ، مي ګیلي له تا نه کیږی
بي وفا وې بي وفا، وپوهیدمه، تازهٔ هیر کړمه دلبره

ماخو وې چي تهٔ زما ئي ،زما ښکلي محبوبا ئي
شپه او ورځ به سوزیدمه،تازهٔ هیر کړمه دلبره

لاړې لاړې تهٔ جُدا شوې ، داتهٔ خومره بي وفا شوې
ښکاری هجر کښي به مرمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

تارسُوا زهٔ پریښودمه ،بیا به داسي نهٔ کوومه
داجوړ زهٔ نهٔ پوهیدمه، تازهٔ هیر کړمه دلبره



مي دصبر تیږه ایښي ، دزخمي زړګي دپاسه
خپل زړګي زهٔ صبرومه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

داخوتهٔ ئي چي تهٔ لاړې زما زړهٔ درپسي ژاړی
تاپوښتمه ،تاپوښتمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

تهٔ چي لاړې رانه لاړې ،ځما زړهٔ درپسي ژاړی
زهٔ دې حال معلومومه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

خدائیګو ستړې مي زړګي کړو ټپوسونو ټپوسونو
ستا په مینه باندې ډیر وکړیدمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

زهٔ سحّر دې پریشانه زهٔ یم هسي سرګردانه
تل په تا به نازیدمه ، تازهٔ هیر کړمه دلبره

# غـزل

ورک شـه دلربـا ،دخُلي ورکـه دا دنیـا دنیـا ،زړۀ بـه درلـه وچوی
نۀ کـاندی وفـا دچـا ،څـنـګـه ،څنګه ،محبوبا،زړۀ به درله وچوی

ډیــر یـــاران مـــي اوکتـــل ،ډیـــر خـــوبـــان مـــي اوســـاتـــل
نشتـه دي یـاری دچـا ،هسـئـي هسئـي وی خوبا،زړۀ به درله وچوی

لاپـروا شـــه تـــۀ دهـر خوبـا،زړۀ تـــۀ صبـر کـړه لـــه بـے وفـا
پـوهـه بـه شـي بي وفـا،څـنـګـه دی دادلربـا ،زړۀ بـه درلـه وچوی

نـــۀ راځـــی جـــانـــان چـــالـــه ،لـــرې وی هـــریـــو خـــوبـــا
ژونـد بـه درلـه کـړی سبا، ژوند به درله کړی بیګازړۀ به درله وچوی

تـــۀ بـــه تـــرې نـــه څـــار څـــار ،ټـول بـــه ئـي لـوګـــي لـوګـــي
وائیـــمـــه د زړۀ نـــه دا، نـــۀ کـــوی وفـــاوفـــا ،زړۀ بـــه درلـــه وچـــوی

وائیـــمـــــه زۀ حـــــال دیـــــار ،زړۀ څـــمـــا چـــاودلـــي دي
ژونـد بـه درلـه کـړی تبـاه بیـا بـه راتـه کـړي دُعـا زړۀ بـه درلـه وچوی

نشتـــــه دلبـــــری دچـــــا ،نشتـــــه دي یـــــاری دچـــــا
مـــۀ کـړه تـۀ یـاری دچـا ،دغـه دي جفـا جفـا ،زړۀ بـه درلـه وچوی

تـــوبـــه دښـــکـــلـــو زۀ کـــړمـــه ، بیـــا مـــي یـــوســـی بـــے وفـــا
سـحـر شـي پـه ښـکـلا کښـي هـمـه بیـا ښکـلا،زړۀ بـه درلـه وچوی



# اے مالکه دجهان !

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

څـومره لوئي دے ،ستا احسان
څـومـره لـویـه ستـا هستـی ده
څـومـره لـویـه ستـا خدائی ده
کــائـنـا ت دي ټـول پیـدا کـړۀ
مـخـلـوقـات دي ټول احیا کړۀ
ټـول څیـزونـه دي عـطـا کـړۀ
څـومـره لـوئـي لـرې خپل شان

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

زنـــدګـــی دي ورعـــطـــا کـــړه
تـــادخـــاورو داوبـــو نـــــه
عـــجـیـبـــه دي ورکـــړو رنګ
عـجـیبـــه دي ورکـړو شـرنګ
عـجـیبـــه دي ورکـړو خـونـد
ســم جُـــدا جُـــدا فـــرهـــنګ
هـــم رحیـــم ئـــي هـــم رحـــمـــان

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

ټول مارۀ دی ستا په خوان
دهمه مخلوق میزبان
کائناتو کښې ئې کران
اے رازقه دجهان
ستا عاشق دے هر انسان

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

هر یو زرۀ په تا قائل دے
هر یو روح تا ته مائل دے
هره ژبه ستا صفت کړی
ستا خدائي باندې ګویان
وی کافر کۀ مسلمان

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !



خزانې دی تا سره دی
دُردانې دی تا سره دی
پکښې پټ او څۀ ښکاره دی
څۀ په زمکه ،په آسمان
ستا صفت مې په زبان

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

ستا صفت چرته ختمیږی
ستا ثنا نۀ تمامیږی
نور مخلوق چې پیدا کیږی
ستا صفت باندې وئیږی
کۀ سحّر ځی فنا کیږی
سلسله به چلیږی
تۀ الله ئې ،تۀ سبحان !

اے خالقه د جهان !
اے مالکه د جهان !

## دلته له چاسره

بس دي څه له دي جهانه
زندګی ده ،دلته ګرانه

دادنیانۀ پوره کیږی
زندګی ده ، له ارمانه

دلته چاسره روزګا ر کړي
هر څوک تیز ځی له هوا نه

مادیر ولیدل پخپله
دې دنیا کړل سرګردانه

وخت آخر شو فتني ډیري
دا ښکاره ده له قرآنه

اے سحر ته حکیم او دانا نۀ ئي
چي حکمت وائي له ځانه



## ___ دنیا بدله شوه! ___

چي ګورمه دنیا ته ، نو دنیا بدله شوه
هغه خلق ورنه څۀ شو هره خوا بدله شوه

پخوا به خندیدلم ،زۀ په هیڅ نۀ پوهیدمه
دا څۀ راسره وشو ، مې خندا بدله شوه

په لارو په کوڅو کښي ،په کورونو په پټو کښي
آ خلق چرته نشته ، دافضا بدله شوه

ګرځیدۀ به ګیر چاپیره کله یو خوا کله بل خوا
اوس ورک دی له دنیا نه، دا دنیا بدله شوه

وفا چاسره نۀ کړی عجبه زمانه ده
زما بدله شوه ، هم دهر چا بدله شوه

اوس نوی نوی خلق دی اوس نوې دنیا ګې ده
فضا بدله شوه ،ټوله هوا بدله شوه

خوږه خوږه دنیا وه ،څۀ بل رنګي هوا وه
آ خلق ورنه تلی دی ،ښُکلا بدله شوه

آ ښکلي ښکلي خلق وو ټول خاوري خاوري شوے
زړګي دسحر خوږدي ئي ادا بدله شوه

## ﴿ دختېو یو صنم ئې ﴾

تش غوښې هډوکي ئې ،درنه دې دومره لګی
دهوا سره خبرې ، دآسمان سره خبرې

دننه سخا چیمبړې ئې ډېوزې درنه خیژي
دځان سره خبرې ، دخپل شان سره خبرې

تا ځان ته دی کتلی ، خپل انجام ته دې کتلی
فرعون ته ځان ته وائې دخپل آن سره خبرې

خپل ځان ته دې لږ پام کړه ،شرم شرم کړه له ځانه
په سخا وجود مغرورئې ،خپل ارمان سره خبرې

توله زندګی دې یو څو کاله، یو څو ورځې
بیا ترمې ترمې شې به ،بیا سبحان سره خبرې

داسر دې نه ټیټیږی ، دازړۀ دې نه پوهیږی
دنیا سره خبرې ،دجانان سره خبرې



بوډاشوې پوهه نۀ شوې راتېول شوې پوهه نۀ شوې
دپوهو لرې لرې ، دنادان سره خبرې

مغروره ! خدائې دې پوه کړه داتۀ ولې نۀ پوهیږې
غریب نه لرې لرې تش دځان سره خبرې

اے یاره! هیڅ هم نۀ ئې تش دختېو یو صنم ئې
بشره دې خاورې کیږی بیا جانا ن سره خبرې

نن ئې سبا به نۀ ئې ،داستا څنګه بقاده
مسلم شه سم انسان شه،هر انسان سره خبرې

## غزل

داعشق اومینه په دنیا به مي یادګار پاتي شي
ښکلي جانان ،ښکلي لیلا به مي سنګار پاتي شي

نوررروزګارونه ،مشغلي کاندي هزارو ګړی
چي پري ژوندي یم ،هغه نوم به مي دلدار پاتي شي

دزماني طوفان به ،ورک که هر څهٔ
عشق به دي بچ که له طوفانه به ګلزار پاتي شي

مینه مجاز کهٔ حقیقت وی مینه ژوند دي خلقه!
دي دنیاګئ کښي به روزګار هم آخرت کښي به روزګار پاتي شي

مینه کړه مینه کړه سحّر! چي ژوندن و مومي
وختونه لږ دی، هسي نه چرته په لار پاتي شي



## غزل

ستا دمیني ټول نقشونه مي په زړهٔ پراتهٔ دی
زهٔ ورانوم ئي له زړګی نه، خو پاخهٔ پرتهٔ دی

ستا دمیني نه قربان شم عجیبه غوندي ده
لکه چي کانړی په اوبو کښي سم درانهٔ پراتهٔ دی

ښکاري خونه ظاهره،ځکه چي جُدا جُدا یو
محسوسومه چي په زړهٔ کښي مي خوارهٔ پراتهٔ دی

نوي نغمي ،نوي سندري په زړګی کښي چرته
تهٔ رانه تلي نو تارونه ټول سارهٔ پراتهٔ دی

تاچي سحّر سره وفا ونهٔ کړه نور به څهٔ کړي
لامي دمیني احساسونه ټول اودهٔ پراتهٔ دی

## رباعی

دنیا دار په حقیقت چېرته پوهیږي
دنیادار په صداقت چېرته پوهیږي
ئي نظر او زړۀ کار نۀ کړي
دنیا دار په شرافت چېرته پوهیږي

## رباعی

قدر دانسان کړه،دوه ورځې ژوندن دي
هر انسان جانان کړه،دوه ورځې ژوندن دي
پوهه په خپل ځان شه ،اے ناپوهه یاره!
فکر هر زمان کړه ،دوه ورځې ژوندن دے



## حُسن

زړۀ مې نۀ توریږي ددنیا د ښکلو نه
نوې نوې غواړي ،دلربا دښکلو ښکلو نه

حُسن عجب شي دے ،زړۀ مې وړې په یو کتو باندې
مینه ،وصال ،غواړي،هم وفا دښکلوښکلو نه

څۀ وکړۀ مې مینې ،محبوبا،اوزړۀ زماسره
رُسوا شوم بې قراره بې نوا،دښکلو ښکلو نه

زړۀ قلارووم زۀ ،زړۀ تري صبرووم زۀ
چېرته قراریږي ،دارسُوا دښکلوښکلونه

چې چا سره مې مینه کړه ،سّحر بې وفا ووتل
جُدائیمه ژړیږم،په ژړا دښکلو ښکلونه

## خپل استاذ ته!

دازله چې زهٔ راغلم ----

نو نظر ځما په تا شهٔ

څومره ښهٔ ته لګیدے به

ابتداء ځما دژوند وه

مې معصوم معصوم زړګي وو

ټول جهان راته تیارهٔ وو

یریدمه ،بوږنیدمه ،دهرچانه ،دهر څهٔ نه

تا ------------

الله---الله---راوښود ----

الف،یا دې راته وښود ----

تا ------------

رو رو په سمه لاره زهٔ روان کړم

تا ------------

عادت کړم په ستائینه

دالله ---دالله ----دالله-----

تا ډیوه درنړاراکړه

تاپه نیغه لارروان کړم



کهٔ تهٔ نهٔ وے مابه څهٔ کړهٔ

زهٔ به ډوب ووم په تیارو کښې

نهٔ مسلم او نهٔ کافر به زهٔ تیر شوے

تازهٔ بَر کړمه په خلقو

تا تحفه دقرآن راکړه

تا تحفه دپوهې راکړه

تا ------------

ځما غاړه دې کړه هسکه

شوې ځماسترګې اوچتې

ټول جهان دے راته وښود

جهانونو نه خبر شوم

چې دا څهٔ دی ----

احسانونه دې بے شماره

تا زهٔ نهٔ شم هیرولې

مې د مور دپلار نظر ئې

مې دپلار نیکهٔ ځیګر ئې

دپلرونو ،دنیکونو-----

سره دې ژبې خبرې----

سره دې سترګو کتلې----

د وروکی ژوند یادونه------

په زړګی باندې مې نقش دی

اوس چې ګورمه زۀ تا ته!

نو --- زړګې ځما خوږېږی

ټول وجو دې بهیدلې

تۀ له ځایه نه ----

حرکت کولې نۀ شې

ښکلې ستر ګې دے ړندې شوې

ښکلې مخ دے ګونجې ګونجی ---

هغه هر څۀ درنه هیر شو خطا کیږے

تُور ویښتۀ دے چرته تلی

ستا آواز کښې درد پیدا شو

سم قدم اخستې نۀ شې

ورک شوې ،ورک شوې له جهانه!

ستا خالی خالی ځایونه

شو دردونه ----



تیر وختونه رایادیږی

هر څۀ زړۀ ته نیغ نیغ کیږی

کور خالی ---کوڅې خالی شوې

په حجره جماعت کښې نۀ ئې

ښۀ وختو نه ---دې ټول یوړۀ

بیا به --- رانشې، آ ورځې

زۀ ماشوم --- او تۀ به ځوان وے---

زۀ به ټول عمر نیمګړے

اوس به زړۀ زما خوږیږی

زۀ عادت ستا د دنیا ووم

اوس مې هغه دنیا ورانه

نن مې هغه دنیا لاړه

نن مې هغه جهان لاړۀ

مې به ټول عمر په زړه کښې

دسّحر د پاک زړګی نه

هیر به نشې

هیر به نشې

اے ځما خپله استاذه

اے ځما خپله استاذه

## رباعي

کهٔ تهٔ رو غ ئي ښهٔ به وخوري
کهٔ نارو غ ئي څهٔ به وخوري
کهٔ تهٔ رو غ ئي جهان ستا دے
کهٔ نارو غ ئي زړهٔ به وخوري

## رباعي

په هیچا باندي بر نهٔ ئي
په هیچا باندي لر نهٔ ئي
کهٔ څهٔ دے رب ذوالجلال دے
په هیچا مکبر نهٔ ئي

## رُباعي

جُدا اوسه له خلقو تنها اوسه له خلقو
سُکون به دے نصیب وي فنا اوسه له خلقو
عبادت نه دے جارباسي آخرت نه دے جارباسي
صحراکښې اوسیدل کړه، جُدااوسه له خلقو



## مړې ښځې ته!

زهٔ به دزړهٔ رازونه چاته وایم ،زما بهاره لاړې
زما سپرلیه راشه ،دژوند ملګرې راشه ،تهٔ مروره لاړې

دزړهٔ حالونه به زهٔ چاته وایم دزړهٔ څوک نشته دلته
مې دقیصو ملګرې ،دخوشحالو ملګرې ،تهٔ بې ګودره لاړې

تازهٔ یوازې پرېښوم ،تاخوزهٔ داسې پرېښوم
مې دتیرو ملګرې ---له مازیګره لاړې

زهٔ ستا سوچونه کوم ،زهٔ ستا دردونه کوم
زهٔ سودائي دے کړمه ،زما دلبره لاړې

په نیمه شپه راپاسم ،خواکښې مې نهٔ ئې ګلې
دتسلو ملګرې ،دپریشانو ملګرې زما څیګره لاړې

په تورو خاورو کښې خو خاورې شولې ،زهٔ به یوازې څهٔ کړم
زما دزړهٔ ملګرې تنهاتنهادے کړمه مې د زړهٔ سره لاړې

مـالـه لږ خـوب کښې راشـه،زۀ ډیـر خفـه خفـه ئیم
ګـنـی نـو مـړبـه شـمـه،تـۀ غـمـګـساره لاړې

لاډیـر وختـی وو ګـلـې، میـنـه بـه چـا سـره کـړم
ډیـر غـلـې غـلـې دے کـړم ،زمـا دلـداره لاړې

دنـوی ژونـد مـلـګـرې ! دزاړۀ ژونـد مـلـګـرې !
پـه مـاتیـرې خـورې شـوې تـۀ دسحَـره لاړې



## سبا بیا به څۀ وی

نـن کـۀ اختیـار لـرې افسـر ئـې، سبـا بیـا بـه څـۀ وی
کـۀ ډیـر ښـائسـت لـرے دلبـر ئـې، سبا بیا بـه څـۀ وی

کـه الـقیـوم دے هـغـه ذات چـې تـل وی بـه مـدام
تـۀ کـۀ څـو ورځـې مـعتبـر ئـې سبـا بیـا بـه څـۀ وی

شـان وشـوکـت تـه دشـاهـانـو پـه تـاریخ وګـوره
شـاهـی دربـار کښـې کـۀ چاکـر ئـې سبا بیا به څۀ وی

تـۀ کـۀ خـوشحـالـه ئـې سـو کـالـه ،لاپروا پـه جهـان
څـۀ شـو اے یـاره کـه نـوکـر ئـې سبا بیا بـه څـۀ وی

څائـې دے ساحل دے لکه خَس غونډې به پروت په غاړه
نـن کـه دریـا کښـې تـۀ پـه سـر ئـې سبا بیا به څۀ وی

لتـار لتـار ویـجـار ویـجـار بـه دے ژونـدن شی همـه
دلتـه کـۀ ډیـر پـه کـروفـر ئـې ،سبـا بیـا بـه څـۀ وی

سمسور باغونه رژوی تل دخزان یادونه
کۀ تۀ سلطان د ښۀ کشورئي سبا بیا به څۀ وی

تیر بادشاهان د دنیا څۀ شو، مرګی تول وړي دی
کۀ تۀ فاتح دبحر وبرئي سبا بیا به څۀ وی

زیږ مازیګر شی،هر څۀ زیږ شی غرغرې کۀ نمر
کۀ تۀ اختر ئي یا سحر ئي ،سبا بیابه څۀ وی



## اے بې وفا!

کۀ تۀ راشې کۀ رانۀ شې ستا وفا ته سلام
خواله کۀ راشې کۀ رانشې ستا ادا ته سلام

تازۀ رتیلې ئیمه تازۀ شړلې یمه
زۀ نورتنها بۀ یمه زما دې تا ته سلام

په انتظار انتظار په نن سبا سبا کښې
تانه جُدا جُدا شوم هغې سبا ته سلام

ستا د دروغو خندا ،ماته چې ونۀ خاندې
زما زړګې دې شین کۀ ،ستا مې خندا ته سلام

زما یوازې دنیا مې دیادونو دنیا
مې دغمونو دنیا،ستا مې دنیا ته سلام

چې کله مړ شی سحر قبر له،راچې نۀ شې
راته دُعاونۀ کړې ستا مې دعا ته سلام

## رباعی

تهٔ ښهٔ خبري کوه پستي خبري کوه
مُسکا مُسکا ورسره خوږې خبري کوه
ګرانه خبري زده که خوږې شکري زده که
په مراوۍ سترګو باندې مړاوي خبري کوه

## رباعی

ددنیا په شتهٔ نازمهٔ کوه
ددنیا په کړهٔ نازمهٔ کوه
دادنیا عجبه تپوقه
ددنیا په ښهٔ نازمهٔ کوه



## (ژوند)

داژونددې کهٔ جنجال دې
دادنیا ده کهٔ وبال دې
راځي تر سختو---سخته---
دم په دم ئې ښهٔ مثال دې

دا بیلتون دے وفا چرته
تهٔ خو وائې دا وصال دے

دلته غم دپاسه غم دے
نادان وائی ژوند خوشحال دے

کهٔ پرې دروهي آخرت ته
نو بیا دا ژوندن مثال دے

زړهٔ سترې به دې ژوندکړی
دژوند داخهٔ کمال دې

دا لمحه لمحه نوریږی
دا د خاورو یو دیوال دے

اوس سحّرا او بیابیګاوی
دژوندن داځهٔ جمال دے

## توره سیلۍ

ښکلې زندګۍ وه هسې تیره شوه
رنګینه مې قیصې وه رانه هیره شوه

یورې ئې په مخه، طوفانونه وو
ژوند توره سیلۍ وه راچاپیره شوه

ماوې اې زړګیه ته خوشحال به ئې
وار مې شو خطا پکښې، ساه مې تیره وبیره شوه

څو ورځې ژوندوو په سباسبا کښې تیر شولو
ښکلې زندګۍ وه دمرګي په جال کښې ګیره شوه

ښکلې زندګۍ وه بهارونه وو ----
غوړه زندګۍ وه راته سپوره شوه

سحر وو مازیګر شو توره شپه شوله
قیصې دژوندانه آخر کښې نُوره شوه



## نشته جانان څما!

زۀ هیرشوې جانان بیارایادومه، زمازړۀ لیونې دے
زۀ ورک شوې جانان بیابیالټومه، زمازړۀ لیونې دے

پته ئې نۀ لګی په کومه باندې تلې، جانان مې بے وفا وو
تسلی زړۀ له ورکومه، خُپل زړۀ ټکورومه، زمازړۀ لیونې دے

زمازړګې پسې ژړا که، جانان مې څان رانه جُدا که
هسې پرې څان زۀ غولومه، خُپل زړۀ قلارومه زمازړۀ لیونې دے

ګرځمه، ګرځمه جانان ګورم، پسې جهان ګورم
نشته جانان څما، پسې زۀ اوښکې تویومه، زمازړۀ لیونې دے

دزړګی کور څما خالی دے، چې ورته ګورمه ارمان راځی
زۀ جدائی نۀ شم کولے، پسې به مړشمه له غمه، زمازړۀ لیونې دے

جانان څما دزړۀ نه نۀ ځی، مینه سحر دزړۀ نه نۀ ځی
ښکلې دلبر به خدائیګو ډیرډیر یادومه، زمازړۀ لیونې دے

## اے ځما بچیه!!

زۀ به بیا نۀ یم مابه ګورې
رایا دوې به تیروختونه

هرځائي به ګورې زۀ به نۀ یم
تا خوږوې به مې یادونه

هر وخت به تکنړه غرمه وی
سوزوی تا به سرۀ اورونه

مخې دے مخې ته به کیږم
سخته کۀ وی یارا ختونه

هره لمحه به دے یادیږم
زړګي به ستا کوی دردونه

ځان به عاجز عاجزدربنکاری
زړۀ به دے سُوز کوی آهونه

په هیڅ یوځائي کښې به زۀ نۀ یم
بیا لټوې به ډیر درونه



کتې اوپوزې به خوشي خوشي
زما به اوکړې ، ارمانونه

بیا به دامینه مینه نۀ وی
بیا په زړګی به دے داغونه

چرې به رانشم بچیه !
وکړې کۀ ډیر انتظارونه

بیا به زۀ خاورې خاورې شوې
بیا کۀ تۀ چانړ کړې تول ګردونه

بې اسرې لیونې پاتې به شې
بیا داسحربه نۀ وی، نۀ مابنامونه

## دایوهوا ده!

وګوره دنیا ته چاتړې څۀ جوړکړی دی
چاکۀ هرڅۀ کړی،تړې خالی وتلی دی

دلته ګټه نشته ده دلته بقا نشته دے
چاکه ډیر ګټلی ،تړې مرګی بائیللی دی

دا فناکیدل دی ، داپه مخه تلل دی
څوک کۀ پیداشوی هغه بیا ورک شوی دی

دا یوه هوا ده ، دایوه سیلئی ده
ډیر کورونه وران شو، ټول بادونو وړی دی

چرته راتلی نۀ شي بیا د خاورو دنیاګئی ته
څوک چي یو ځل تلی،نو بیا چالیدلی دی

هیڅ رواوګودرنشته،دمرګ کوراوکوڅه کښي
ګیر چي په مرګی شي خلقو ډیرژړلی دی

هسي به سوداکښي ،هسي په فکرونو---
څۀ ئي حقیقت دے انسان څۀ کتلی دی

مخکښي هم بي وسه اوس هم بي قوته
وګوره،سحر ته ،سحر څۀ موندلی دی



## ټول پیښور خفه دے

ټول پیښور خفه دے،هره کوڅه خفه ده
اورونه بل دی پکښي ،هره لمحه خفه ده

لارو کوڅو کښي ویره ،دهشت دهشت دې پکښي
هر پلو ویره ویره ، هره حصّه خفه ده

هر خواته اُوُرورېږی ،عالم ورتیږی پکښي
لمبي لمبي پیښور ،دزړۀ ټکره خفه ده

وه آزادی به پکښي وه خوشحالی به پکښي
قدم قدم کښي ویره ، هره پښه خفه ده

پیښور سر ټیټ کړے لکه د ګل پریشانه
ټول پیښور حیرانه،دادُردانه خفه ده

خلق ژړیږی پکښي خلق ویریږی پکښي
دکوروتل شولو ګران،ښکلي لیلاه خفه ده

ستا خوشحالی څهٔ شوله،ستاسوکالی څهٔ شوله

ناموس ذرې ذرې دے، هره ذره خفه ده

اے جادوګره څهٔ کړې ؟خواره بم ګره څهٔ کړې؟

دلته خیبر دے مـهٔ کـړه،هره دره خفه ده

اے پیښوره څما ! اے دزړهٔ سـره څما !

په تامې زړهٔ خفه دے ،ستا زمانه خفه ده

دپښتنو تاتوبه،دپختونخواه زړګې دے

د پښتنو زمکه ده ، داپُښتنه خفه ده

یاررخصتیږی ترې نه،کډې باریږی ترې نه

ټول لرو بر خفه دے ،ټوله قصّه خفه ده

ټول پیښور ژاړی اخـوالو ګـــر ژاړی

دپیښورسحر،سحر خفه دے هر یوه خواه خفه ده



## غــزل

هیـڅ مـې تـرې جـوړ نــهٔ کـړهٔ دې دنیـا رالـه زړهٔ وچـوؤ

ورکـــه دادنیـــا شـــه ،هـــر سبــارالـــه زړهٔ وچـوؤ

ستــړې مـــې زړګـــې شــو ،تــوان مــې ورک شـولـو

چـرتـــه سـکـون نشتـــه،هـرې خـوارالــه زړهٔ وچـوؤ

چـــالـــه چـــې ورڅـــم ،نـوپیـکـــه وخیــژی---

څـوک خـواخـوږې نشتــه دے ،هـر چـارالـه زړهٔ وچـوؤ

جــــوړه دادنیـــــا ،دغــــمــــــــه جـــوړه ده

روغ زړګــــې مـــې ژاړی،دے ژړا رالـــــه زړهٔ وچـــوؤ

هیـڅ ئـې حـــاصـل نـــهٔ کـړل،کــهٔ چـاډیـر وکـړل

داده بـــې وفـــا دنیـــا وفـــا رالـــــه زړهٔ وچـــوؤ

ســحــّـر!تـــهٔ وفـــا کـــــه دوفـــاســـره ---

نـــهٔ کـــانـدی وفـــا دنیـــا ،دنیــا رالـــه زړهٔ وچـوؤ

## غزل

لاړۀ لاړۀ وار دي تیر شو زندګی په ختمیدو شوه
دهواتیزې چپې وې مې کشتۍ په ډوبیدو شوه

غورزنګونه ،طوفانونه،زۀ ئې یوړلم په مخه
وارخطاتیزو چپو کړم،زندګی په غرقیدوشوه

پانړه زیړه مې دمخ شوه مې ښکلا ذرې ذرې شوه
لاړ لاړ بهار لاړ،ګل غوټئی په رژیدو شوه

زما زړۀ رورو ډوبیږی ،مې په زړۀ کښې تیارۀ کیږی
بربوکئی دزړګی ماته،راته دا په څڅیدو شوه

ګورې ګورې کۀ زۀ بچ شم،نورمې ژوند په جهان نشته
ساه مې نۀ راځي په بیرته،ساه زما په بندیدو شوه

دسحر دغه ژوندن وو،پوهه نۀ یم رانه تیر شو
پرون ښکلې ښکلي وومه ،نن ځواني په زړیدو شوه



## غزل

عمر مې تول تیر شو دجانان ښکلي فکرونو کښې
لاړه زندګی مې دخپل یار په څو خیالونو کښې

ځوان وومه جانان وومه په طمعو طمعو زوړ شومه
ورکه زندګی شوه! محبوبا ستا په یادونو کښې

نۀ اوځي له زړۀ نه مې، اوسي مې خیالونو کښې
مړ به شم له غمه دلربا ستا په غمونو کښې

ځان مې درنه ځار کړلو ،جهان مې درنه ځارکړلو
هیڅ خوندونه نشته دې دژوندښکلي وختونو کښې

ستړې بے وفا کړمه ،ستړې ئې جفا کړمه
ژونده هسې لاړې ،دجانان خوږو دردونو کښې

ګران شو دجانان موندل،ارمان شو دسحر ددل
لیکمه غزل ځکه د مینې سرو اورونو کښې

## غزل

دوه ورځې ژوند وو مې په یار او په دلدار تیر شو
زما نیمګړې دنیا، ژوند مې بیمار تیر شو

څو ورځې ژوند وو، بیا به زهٔ چرته یم
هره لمحه، هر یو ساعت مې بې قرار تیر شو

زهٔ د جانان په طمع، زهٔ ووم د ګل په طمع
شومه زخمې زهٔ، همه خارزار تیر شو

زندګې یو څلې وی، داورځې بیا نهٔ راځې
ډیر بد نصیبه یمه، زړهٔ مې آزار تیر شو

څوک خو جانان وګټې، څوک ټول جهان وګټې
ما کُل جهان بائیلو، داسې بار بار تیر شو

زهٔ له ازله په جانان باندې مئین راغلې
ژوند مې همه له خپله یاره په څار څار تیر شو

داوسیدو چرته دے، دموسیدو چرته دے
ژوند مې هار هار تیر شو، داسې داغدار تیر شو

څکه خووایُم زهٔ سحّر ډکې دغم سندرې
ژوند مې جُدا جُدا له یاره په ناتار تیر شو



## مینه مینه

لرکه نفرتونه، مینه مینه راپیدا کا، دوه ورځې دنیا ده
مهٔ کړه حسدونه، ښکلې مخ دے په خندا کا دوه ورځې دنیا ده

ولې دې په زړهٔ کښې تو تمونه دی، ولې دې په زړهٔ توره تیاره راخوره شوې ده
تهٔ په سخا ضمیر، په سخا پنجره کښې راګیر شوې ئې زړهٔ خپل صفا کا دوه ورځې دنیا

تهٔ چرته او زهٔ چرته، داخو خپل خالق په لوئې حکمت راپیدا کړے یو
خاطر که له وختونو، زړ انسان کېږه جُدا کا، دوه ورځې دنیا ده

ولې په زړهٔ ډک ئې یاره! تا نه زهٔ تپوس کوم
آخر یوه ګناه وی؟ یاره ولې تهٔ خطا کا، دوه ورځې دنیا ده

مینه مینه شه، ښکلې ښکلې شه---
څو به تورو خاورو ته، دلته نن ښکلا کا، دوه ورځې دنیا ده

څو په داسې لاره، طوفانونه، ګړنګونه دی---
ورکیږو فنا کیږو یاره، زړهٔ نه دې دعا کا، دوه ورځې دنیا ده

نور غمونه ډیر دی، بدنیتې دځان نه لرې کا
سحّر غوندې خندا کا، دسبا پشان رڼا کا، دوه ورځې دنیا ده

## کله چي جانان جُداشو

ستا نخښو ته چي ګورم په حسرت په ارمانونو
جانانه! لیوني به شم، په فکر، په یادونو

دشپي مي شو ګیره وي، خوب مي تلي دے له سر
سبا کړمه دلبره! ستا په یاد وپه فکرونو

په زړۀ مي څۀ چل کیږي، ستا فراق او جدائی شوه
زړګي ځما خوریږي، ستا په یاد، ستا په دردونو

ستا نخښو ته زۀ ګورم، پکښي تا زۀ لټووم
خپل زړۀ قلاروم ستا په پاتي آثارونو

تنها شومه دلبره! هیڅ مزه مي ژوندن نۀ که
دزړۀ نه مزه لاړه، دهجران په سرو اورونو

له غمه به دي مړ شم، چي تۀ نۀ ئې اے دلبره
خفه خفه زۀ پروت یم ستا په فکر په سوچونو

دګوره دګوره محبوبان واړه فنا شو
سَحَر! هیرئې نۀ کړي یادوه ئې په شعرونو



## خپل جانان ته!!

زما ارمان درسره یوسه چي ځې
ښکلي جهان درسره یوسه چي ځې
پریږده چي ګرځم لیوني لیوني
ځما درمان درسره یوسه چي ځې
ددیدنو نوو ځي لاړي ګله
همه آسمان درسره یوسه چي ځې
تا مي وجودنه رو غ زړګي وړي دي
ځیري ګریوان درسره یوسه چي ځې
تۀ مي جهان تۀ مي جانان وې ګله
دانور جهان درسره یوسه چي ځې
ځما جانانه مینه وې تۀ
دعشق دیوان درسره یوسه چي ځې
تا لیوني کړم سودائی دي کړمه
امن وامان درسره یوسه چي ځې

ښکلي وختونه وو جانانه چرته بيا نۀ راځي
هر يو زمان درسره يوسه چې ځي

ځما دسترګو نه به نم د بيلتانۀ بهيږي
ځما چشمان درسره يوسه چې ځي

زۀ به يوازې او تنها تنهايم
داخپل جانان درسره يوسه چې ځي

ټولې خبرې مې په زړۀ وليکه
ځما بيان درسره يوسه چې ځي

ماسره تا د محبت پخې وعدې کړې وې
ځما پيمان درسره يوسه چې ځي

تۀ دسحر دزړګې درد ئې کله!
مينه ايمان درسره يوسه چې ځي

(شعر)

مينه مې ايمان دے ځکه کړمه داخبرې
زړۀ مې دجانان دے ځکه وائم ملغلرې



## درازونو ګلې!

ځما دژوند ملګرې! دښو وختونو ګلې
ځما دټولې دنيا ،مې درازونو ګلې

دښکلې ښکلې دنيا ،مې ديادونو ګلې
دخوشحالو ملګرې،مې دغمونو ګلې

ځما دپاره وے تۀ، ځما دلداره وے تۀ
وے ټوله مينه مينه ،ځما ښۀ ياره وے تۀ

تل ماته ناسته به وے ځما په طمع به وے
سترګې په لار به وے،په زړۀ ښۀ جمع به وے

زۀ سُورې سُورې مدام، تۀ لاندې ناسته به وے
دروغ په تا کښې نۀ وو،ښۀ ښکلې راسته به وے

تا تمامې عمر مې زړۀ ساتلې
داسې اوس شوې لکه خزان وهلې

چې به خفه ووم،نو پخلا به دې کړم
چې به ګډېوډېودم ،نو جُدابه دې کړم

تا په ربنتیا باندې مې مینه کړې
ما سره ډېر دې زړۀ چاودنه کړې

چې به بیماروم نو پریشانه به وې
چې به کورنۀ ووم سرګردانه به وې

تامې دمال څوکیداري کړې ده
تادکوډلې مې همیش پهره داري کړې ده

چې به زۀ وږې ووم نو تا موړ کړې
چې به زۀ سخا ووم،نوتا جوړ کړې

تا زندګی ځما نه ځارځار کړه
هره لمحه دې ځان له تارتار کړه



زما ژوندن ته به دې ملا تړلې
زما خدمت ته به دې شا تړلې

تا خپله خوښه چرته کړې نۀ وه
ځما رضا باندې رضا دې چرې ستړې نۀ وه

دې لاسو پښو ماله هر څۀ راکړې
خپل ژوندانۀ کله خواږۀ کله تراخۀ راکړې

ښکلې وختونه ورځې شپې لکه هوا لاړل
بیرته نۀ راځې وختونه،سم سدا لاړل

افسوس افسوس شو سحر، ارمان ارمان شو سحر،
مخ ته چې ګورم دیار،مړاوې شو مړاوې دلبر

# اے دنګو دنګو خاورو !

اے دخوړ غاړے !

اے دنګو دنګو خاورو!

ماشوم توب کښي ،زلمیتوب کښي

چي به راغلم دلته ------

ښائسته ښائسته ----

او دۀ او دۀ ---

او غلي غلي ---

خوشي خوشي لګیدې به په ما

آ --

زمانو کښي ---

لکه ګل ترو تازه وومه زۀ

زما احساس ښکلي رنګین رنګین وو

زۀ د فنا سبق نه ---

دورځو شپو د تګ نه



نۀ ووم خبر ----

په بې غمي په ناپوهي کښي زما ژوند تیریدو

ما هر څۀ څۀ وکړل ----

زما د کلي دخوړ غاړې !

دنګو دنګو خاورو !

زۀ نن په مړاوُ سترګو

په زوړ وجود ---

خپل تیر وختونه ګورم

زۀ شومه مړاوې ---

او تۀ هغه رنګي ---

په خپل انداز باندې ---

خاموشه پرته ---

په تا خوړیږي---

زماني تیرې شوے

خو هغه سُر او هغه تا ل دے---

خدائیګو هغه شاني ---

اُوبه رواني درنه ---

ګورې پـه کوم لورې ځي

دلته به نورخلق وو

تلی پـه کوم لوری ---

اوس نوی نوی خلق ---

تۀ پـه خپل رنګ پرته ئې

پـه خپل آهنګ پرته ئې

تۀ به شي نوره ښائسته !!

تۀ به ئې داسې پرته --

پـه ما به خاورې واوری

زۀ درنه ورک به شمه

پـه حقیقت چې زیر شم

ماله یو درد راکوي

فنافنا به شمه ---



ښکاری ژوند دوه ورځې دے

فنا فنا ښکاری ----

ښکلي دخوړ غاړۍ !

اے دنګو دنګو خاورو !

تا کښې سبق پروت دې

یو حقیقت پروت دے

سحر چې ګوری کله ---

نو ئې زړګي نوړیږی

اوئې زړګي خوږیږی

له فنا---

زړۀ درزیږی

اے دنګو دنګو خاورو

زما د خوړ غاړے

# لوګي لوګي

زړۀ خو هر څۀ څۀ غواړي
کله خاندي ، کله ژاړي --

تل دزړۀ په لاره مۀ ځه
سړیتوب ځني رانغاړي

دخپل ځان نه وویرېږه
تل سایه درته ولاړي

ښۀ عمل خپله شیوه کا
داسي ژوند کا چي ویاړي

دے زړګویو ته حیران یم
چي په هیڅ دبدو نۀ اوري

زۀ سحر لوګي لوګي شوم
زړۀ مي غم ته ورتر غاړي



# مازیګر

دا زیړي زیړي نمر
دلته لوبه مازیګر

چي دنیا ته کړم نظر
نو سوزیږي مي ځیګر

نۀ په زور ده نۀ په زر
دلته ده په مقدر

مۀ خندا که مۀ ژړا
ځما یارا شه خبر

د قسمت نه سوا نشته
کۀ تۀ وچوي خپل سر

در رسیږي وار په وار
کۀ تۀ لړ ئي کۀ تۀ بر

نه په جنګ نۀ په جدل
خپله برخه دهر سر

کۀ ډیر هر څۀ هر څۀ وکړي
په یو دم کښې شي نظر

چانه اخلي چاته ورکړي
څومره لوي ځما دلبر

کۀ په لویه بیړۍ سوزئي
شي به ډوب په سمندر

دچا خیال ګمان هم نۀ وی
په دنیا شی نامور

دخدائي لوئي حکمت ته ګوره
غریبان کړی معتبر

ما ډیر و لیدل پخپله
بادشاهان شی درپه در

که داتوله دنیا ستا شی
یخ به نۀ شی ستا ټټر

دنیا څو رنګه چلیږی
کله سپین او کله زر

بندګی کړه بندګی ---
په الله باندې نظر

دا دنیا عجیبه لوبه
دلته وخت دے مختصر

ددنیا نه شه بے نیازه
شه فقیر ،فقیر ،فقیر

ژوند په نیمه لار کښې ورک شی
عجیبه غوندې سفر



## آرزو

تۀ چه پکښې نۀ ئې زۀ به ښکلي جهان څه کړمه
اے زما جانانه! زهٔ به بل یو جانان څه کړمه

تۀ زما دنیا ئې، تمنا ئې، یو آرزو مې ئې
تۀ مې تلوسه ئې، زۀ به بل یو ارمان څه کړمه

زړۀ نه تکوریږی، قلاریږی په بل چا زما
ته زما جانان ئې زۀ به نورنور خوبان څه کړمه

زړۀ کښې مې ښکلا یوه رنړا د تا د مینې ده
ښکلي که آسمان دے، زۀ به ښکلي آسمان څه کړمه

ستا د غمه ډک زړګې، خیالي دنیا مې خوښه ده
ورکه دې دنیا شی زۀ به سر وسامان څه کړمه

غواړم چې مې زړۀ کښې هر زمان وې تۀ
ته چې ئې جدا، نو زۀ به داسې زمان څه کړمه

څکه شعروائم مې یو نور د یار په زړۀ کښې دے
بیان چه د یارنۀ وی سحر هسې بیان څه کړمه

طارق سَحر د مجاز او حقیقت په فلسفه پوهه او دانشور شاعر دے

پروفیسر ډاکټر راج ولی شاه خټک
(پېښور يونيورسټي)

| | | |
|---|---|---|
| نوم | : | محمد طارق |
| تخلص | : | سَحر |
| د پلار نوم | : | یوسف خان |
| قام قبیله | : | خټک |
| درک | : | شاه ډنډ، لوند خوړ، مردان، پختونخواه |
| کسب | : | د ادبیاتو اُستاد |
| چاپ کتابونه | : | (۱) ددشت لاروي |
| | | (۲) ژوند یو سراب |
| | | (۳) یادونه او دردونه |
| | | (۴) خالی لاسونه |
| | | (۵) خیالونه او فکرونه |